١٤
















# د شورى هنداره

له لومړۍ دورې څخه تر نهمې دورې پورې

( ١٣١٠ - ١٣٣٦ هجري لمريز )

## لومړى ټوك






# د شورى هنداره

## لومړی ټوک



دلومړى دورې څخه تر نهمې دورې پورې

د ۱۳۱۰ څخه تر ۱۳۳۶ هجرى لمريز کال پورى

# د کتاب ځانګړنې

د کتاب نوم : د شورى هنداره لمړى ټوك

ليکونکى: محمد محسن صابر هروى

پشتوژباړه : غوث الدين جلالزى

مهتمم : خيړنوال شاه سلطان عاكفي

تايپ كونكي: مسعود غورځنګ

كمپوزاوديزاين: خواجه جاويد صديقى

د چاپ نېټه: ۱۳۸۷ هجرى لمريز كال، مرغومى

دچاپ شمير: ۱۰۰۰ ټوكه

خپرندوى : د ولسي جرګې د عامه اړيكو رياست – كابل

# زمونږ خبرې

د شورى د هندارى كتاب په دوه ټوكو كى د ولسي جرګى د ۱۳۴۵ څخه تر ۱۳۵۲ كلو پورې د غونډو بهير د خپرونو په لوي مديريت كى د اطلاعاتو د مسوول خداى بخښلي محمد محسن صابرهروى په ميړانه چمتوشويدۀ ، چې د تاريخى مـهمو پيښو په ګډون د غونډو د دائريدو څرنګوالى ، غړى ، ټاكنى ، بحثونه اود ملى شورى پريكړى ( د لمړى دورى ۱۳۱۰ څخه تر ديارلسمى دورى ۱۳۶۶ پورى) پكښې شاملى دى، ليكونكى د هغه وخت د مراجعينو او په ځانګړى توګه د هغه وخت د پوهنتون د محصلينو دَ غوښتنو د پوره كولو لپاره د شورى د كتابتون او ارشيف څخه مواد راټول او زيار ئى يوست چې هغه چاپ كړى ، متاسفانه د ناخرګنده دلائلو له مخى هغه تر اوسه پورى نه دى نشر شوى.

دا كتاب چې په ساده ژبه د هغه د خپل وخت په ادبياتو ليكل شويدى د تحقيق او څيړنى د خاوندانو لپاره ښه سرچينه شميرل كيداى شى.

په داسى حال كى چې زمونږ هيواد اتيا كاله د قانون ګذاري بهير تجربه كړى ده خو داچې زيات خلك و معلوماتى سرچينو ته لاس رسى نلرى فكر كوى چې اوسنى ملى شوري لمړنى اويواځنى قانونى ځاى دى.

د دى فكر بر بنسټ د درسى اثر د خپريدو اړتياپه ښه توګه معلوميداى شى، د ولسي جرګې د اطلاعاتو او عامه اړيكو رياست د هيواد د ليكوالو د ليكل شوو تاريخى اثاروپه خوندى ساتلو او ګرانو هيوادوالوته د هغوى په رسولوكي يو مهم ګام اخستى دى.

د يادونى وړ او اړين ټكى دادى چې د دى كتاب په چاپ كى هيڅ ډول تصرف نه دى شوى او اثر په همغه لمړنى شكل چې ليكونكى ليكلى دى د سيل پروژى ( يو، ان ، دى، پى موسسى) په مالى مرسته او د ولسى جرګې د منشى نائب داكتر محمد صالح سلجوقى په هڅونه او مرسته ، د ولسي جرګې د اطلاعاتو او عامه اړيكو رياست په ميړانه او د ښاغلى پوهنياردپلوم انجينر محمد شريف دهيار په دوستانه او بى مانندە زيار ايستنى سره چې خداى بخښلى محمد محسن صابر هروى ته خاص اخلاص لرى ، او آغلى دپلومه انجينر صابره صابر د خداى بخښلى محمد محسن صابر هروي د لور په مرسته د چاپ امكان پيدا كوى.

هيله منده يم چه د ښاغلو لوستونكو لپاره ګټور او اغيزمن واقع شى او د هيواد د

# د ليکوال ژوندليك

خدای بخښلی محمد محسن صابرهروی په ۱۳۰۶ هجری لمریز کال کی په هرات کی په یوه روڼ آنده کورنی کی د خواجه عبدالله په کلی کی پیدا شوی او دنیا ته راغلی دی او دا نه چي دی یو تکړه شاعر و دی ژورنالست، پوه او کامیابه اکادمیسن هم و.

خدای بخښلی محمد محسن صابرهروی خپلی لمړنی زده کړی د سلطان غیاث الدین غوري په لمړني ښوونځي کی سرته رسولی دي او لوړې زده کړې نی د جامی هروی په لیسه کي پای ته رسولی دی.

او نوری دوامداره زده کړی نی په هغه وخت کي د نورو تجربه لرونکو استادانو څخه لاس ته راوړی او د ۱۳۲۲ او ۱۳۲۳ هجری لمریز کلونو په اوږدو کی د هرات په معارف کی د استاد په توګه نی دنده ترسره کړې او د ۱۳۲۵ کال څخه نی د تمثیل په هنر لاس پوري کړ او تل یی تولنیزرنځونه او کړاونه د تیاتر په چوکات کی د صحنی پر مخ راوړل.

په ۱۳۲۸ هجری لمریز کال کی د کابل پوهنتون په اتحادیه کی شامل شو او په ۱۳۲۹ هجری لمریز کال کي د بغلان په ولایت کی د نساجی تیاتربنسټ ایښودونکی او فعال ممثل و. په ۱۳۳۵ هجری لمریز کال کی د پروان د مطبعی د آمر په توګه او په ۱۳۳۶ هجری لمریز کی د کابل د راډیو د څیړونکی او لوستونکی دغړی په توګه او د۱۳۳۷ او ۱۳۳۹ هجری لمریز کلونو په اوږدو کی د کابل د ښاروالی د تبلیغاتو د عمومی مدیریت د مرستیال په توګه او د پامیر د مجلی خپرولو دنده په غاړه در لوده.

خدای بخښلی استاد صابر هروی د ۱۳۳۹ هجری لمریز کال څخه تر ۱۳۴۰ هجری لمریز کال پوری د بدخشان د مطبعی د آمر په توګه او د ۱۳۴۲ هجری لمریز کال څخه تر ۱۳۴۵ هجری لمریز کال پورې د دوهم خل لپاره د پروان د مطبعی د آمر په توګه دنده سرته رسوله.

د ۱۳۴۵ څخه تر ۱۳۵۳ هجری لمریز کلونو په موده کی د ملی شوری ( ۱۲ او۱۳ ) دوری د اطلاعاتو او ثبتولو د بهیر او د ملی شوری د ارشیف د امر په توګه نی دنده سر ته رسوله.

د ۱۳۴۵ او ۱۳۵۸ هجری لمریز کلونو په منځ کی ئی د مالیی وزارت د تحریراتو د لوي مدیر په توګه ئی په ریښتنی ډول دنده سرته رسولی ده.

د ۱۳۶۲ او ۱۳۶۳ هجری لمریز کلونو په موده کی د کابل د راډیو ټلویزیون د دری شعرونو د کنترول کونکی او ترتیب کوونکی په توګه ئی دنده درلوده. تر هغه وخت پوری چی بی ګټی او کورسوځونکی جګړو او د غمجنو پیښو په رامنځ ته کیدلو سره په ۱۳۷۲ هجری لمریز کال کی د ده په شان نور قلم لرونکی ، شاعران او نامتو لیکونکی د وطن پریښودلو ته مجبوره شول او پردیو هیوادوته ولاړل ، که څه هم په هر ډول شرایطو کی وه ، څه په وطن کی څه د وطن څخه په مهاجرت او کوښه والی کی خو د بدن په هډوکو او غوښوکی ئی د وطن او د وطنوالو یاد او مینه اغښل شوي وه او د خپل هیواد څخه یو ګړی بی غمه نه وه. لکه څنګه چي د هغه مفکوره او شعرونه د دي شاهد دي.

د ده د لیکل شوو کتابونو څخه یو هم همدغه کتاب یعنی د شوری هنداره ده چي د وخت په تیریدلو سره د ولسي جرګی د اطلاعاتو اوتولنیزو اړیکو ریاست د بی ساری مرستی په واسطه د چاپولو په ګانه سمبال شو.

# دعنوانونو لړليك

| ګڼه | عنوان | مخونه |
|---|---|---|


سیف الدین لودین کتابتون
کتاب پر لیسي شمیره



## د شورى د هندارى په نامه ددى ټولګې(مجموعى) د تدوين لامل

د ۱۳۴۵ کال څخه د ۱۳۵۲ کال د غوائى تر مياشتى پورى کله چې شاهى رژيم په جمهورى رژيم بدل شو د ولسى جرګې د خپرونو په لوي مديريت کې د عمومى (پښتو او ښکاره) غونډو د بهيراو اطلاعاتو د ثبت مسوول وم.

د دندى په لمړيو ورځو کې هره ورځ يو شمير روڼ آندى زلمى او محصلين به د شورى خپرونو (نشراتو) ته راتلل اود شورى اودهغې دځينو دورو په برخه کى به ئى خبرتيائى معلومات غوښتل ، دا چې څوک بلد نه وه او صحيح مدرکونه هم موجود نه وو نو تش لاس به بيرته ستنيدل.

اوسنى ليکونکى د محصلينو اوهغو زلميانو د ستونزو د حل لپاره چې د مونوګراف او دهغه وخت د تقنينى مضمونونود ليکلو په خاطرسرګردانه وو، چا صحيح او سالم مدرکونه او سندونه هغوى ته نه ورکول، په دى فکر کى شوم چې د شورى تاريخچه را ټوله او ثبت ئى کړم ، هغه وه چې دا کار مى د ادارى پلاوى او کلتورى انجمن(ټولنه) د ځينو غړواو په ځانګړي توګه د ولسي جرګې د دولسمى دورې د رئيس په مشوره پيل کړل. د نيکه مرغه کتابتون او د شورى د ارشيف زيرمتون (مخزن) مى په واک (لاس رسى ) کې درلود او ودې هدف ته د رسيدو دپاره ډيره ښه او ګټوره منبع موجوده وه ، د ضرورى مطلبونو او يادداښتونو په را ټولولو مى پيل وکړ، د پنځو کلونو په موده کى مى د ۱۳ دورې تر دوهم کال پورى د لرغونى افغانستان د قانون جوړونى د ژوند لويه تاريخچه د ۱۲ دورې تر پاى پورى ثبت کړ، له نيکه مرغه د دى سره يوځاى د افغانستان د لويوجرګو تاريخچې د شورى تاريخچې سره يوځاى ثبت شوى ، په دى وخت د عظمى صدارت دپارلمانى ادارى و دى مهمى موضوع ته پام شو او وئى غوښتل چې دا ټولګه (مجموعه ) د هغى د ټولو تاريخى سندونو او مدرکونو سره يو ځاى زما د واک څخه وباسى او د صدارت د پارلمانى ادارې لخوا چې رئيس ښاغلى محمد ياسين وه چاپ کړى او ددى ارزښتناکه ټولګې (مجموعې ) ابتکار په خپل نامه او د هغه له مخى پر خپلو خوش خدمتيو باندى يو څه نور هم زيات کړى.

اصغربشیر هروی چي ددی کار د تدوین او د افغانستان د لوئی جرګې د تاریخچې څخه ئی خبر درلود موضوع ئی د هغه وخت د اطلاعاتو او کلتور وزیر داکتر نوین ته خبر ورکړ او زما څخه ئی وغوښتل چي د ( افغانستان د لویو جرګو تاریخچې ) وهغه ته وسپارم چي د لوئی جرګې په ویاړ ئی چاپ او د لوئی جرګی په ورځ ئی وویشی.

څنګه چي ما ددی تاریخچی یو نقل درلودی د اطلاعاتو وزیر (دکتورنوین) په ۲۴ ساعتو کي د اطلاعاتو او کلتور وزارت د تحریراتو د ټایپیست په وسیله د نوموړی تاریخچی درې نقله ټیپ کړ چي دوه نقله ئی ماته بیرته راکړه او یو نقل ئی د هدایت اخستلو د پاره جمهوري ریاست ته یووړ، د بده مرغه پوه نشوم چي په کوم علت د هغه چاپ معطل او لویه جرګه ترسره شوه ، د لوئی جرګې تر پاي ته رسیدو وروسته می د لمړی نقل د په لاس راوړلو د پاره د اطلاعاتو او کلتور د وزیر څخه غوښتنه وکړه خو هغه خبره نن او سبا ته کړه او تر نن ورځی پوری می د نوموړی تاریخچی لمړی نقل په لاس را نووړ، ترڅو چی د لوئی جرګې د تاریخچی چاپ شوی نقل په لږ تصرف او زیاتوالی ( د انقلاب د وخت د لوئی جرګې د جریان په زیاتوالی) می د یو دوست په شخصی کتابتون کی چي د بل چاپه نامه چاپ شوی وو ولیدي.

بیله څنډه می موضوع د لیکوالو ټولنی ته خبر ورکړ او یو نقل د افغانستان د لویو جرګو تاریخچې چي راسره وه د کتاب سره یوځای هغه ټولنی ته وسپارل چي ښاغلی ډاکتر جاوید ومایل هروی هغه له کتاب سره تطبیق او په شفاهی ډول ئی تائید کړه چي اتیا په سلوکی د لیکونکی تالیف شوي تاریخچې ده.

زه چي تازه د ژوند د جنجالونو او بند څخه خوشی شوی وم نمی غوښتل چي د چاسره مرافعه وغواړم نومی غاښ پر څګر ولګاوه (صبر می وکړ) او د چوپتیا ټاپه می پر خوله ووهله.

د مطلب څخه لری ولاړ نه شم ، د انقلاب په پیل کی کورونه تلاښی کیدل په تلاښی کي یوشمیرکتابونه او د یاددابنت پاڼی چي د لیکونکی د پنځوس کلن ژوند ثمره وه د لاسه مي ووتل چي د افغانستان د شوری تاریخ ( دشوری هنداره) ځیني مهمی برخی چي زما تالیف وه پکي شاملي وی او همدارنګه د دوهمی څخه تر یوولسمی دورې پوري د استازو او غونډو انځورونه (عکسونه) هم پدی تلاښی کی یووړل شول چي له بده مرغه بیا په لاس رانه غلل.

دا چي د سرکال په پیل کی بیا ددی تاریخ د ترتیب او تنظیم په فکر کي ولویدم تر کومه ځایه چي می لاسرسی کیدی اود وختونو د زیار او ځیړني ناتمامی او تیتی ( خوري) پاڼی می راټولی او ترتیب کړې که خدای وکړی د ...

## د ملي شورى او ولسي جرګې د غړو شمير په بيلابيلو دورو او کلونو کې

په لمړى دوره کې د جرګې د غړو شمير د ادارى هيئت په ګډون۱۱۱ تنه

۱. – د دوهمى دورې لمړى کال د جرګې د غړو شمير د ادارى هيئت په ګډون ۱۱۵ تنه
– د دوهمى دورې په دوهم کال د جرګې د غړو شمير د ادارى هيئت په ګډون ۱۱۲ تنه
– د دوهمى دورې په دريم کال د جرګې د غړو شمير د ادارى هيئت په ګډون ۱۱۴ تنه

۲. – د دريمى دورې لمړى کال د جرګې د غړو شمير د ادارى هيئت په ګډون ۱۱۳ تنه
– د دريمى دورې په دوهم کال د جرګې د غړو شمير د ادارى هيئت په ګډون ۱۱۵ تنه
– د دريمى دورې په دريم کال د جرګې د غړو شمير د ادارى هيئت په ګډون ۱۱۴ تنه

۳. د څلورمى دورې په لمړى،دوهم اودريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون ۱۱۶تنه

۴. د پنځمى دورې په لمړى،دوهم او دريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون ۱۱۶تنه

۵. د شپږمى دورې په لمړى،دوهم او دريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون ۱۱۶تنه

۶. د اوونى دورې په لمړى،دوهم او دريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون ۱۷۰تنه

۷. د اتمى دورې په لمړى،دوهم او دريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون ۱۷۱تنه

۸. د نهمى دورې په لمړى،دوهم او دريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون ۱۷۳تنه

۹. د لسمى دورې په لمړى،دوهم او دريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون

۱۰. ديولسمى دورې په لمړى،دوهم او دريم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون د دولسمى دورې په لمړى،دوهم، دريم اوڅلورم کلونوکى دجرګې دغړوشميردادارى هيئت په ګډون

# د مطلب پیل

هغه ګران لوستونکی چي د پلټني او څیړني او په ځانګړي توګه د تاریخي پیچلو مسئلو په اړه بلدتیا لري پوهیږي چي د داسي هیرشوواو د نظرڅخه لویدلو موضوع ګانو او مطلبونو ټولول او یوځای کول سخت اودزیار نه ډک کاردی.

د نظر څخه لویدل په دي معنی چي د نوی اساسي قانون د تسوید او انتقالي دورې څخه مخ کی چي په حقیقت کی ئی د نوی او عصری قانون جوړوني د پاره نوی ور پرانیزی. په سلوکی ۹۸ خلکو څه لوستو او څه نا لوستو د ژوند و دی مهمي او سیاسي موضوع ته پاملرنه نه کوی ، یوازی حکومتونو او هغو کسانو چي د هیواد سیاسي چارو سره ئی اړیکی درلودې و قانون ته اړتیا احساسوله او یا هغه کسان چي هیواد څخه بهرنئ لوړی زده کړی او مطالعه کړی وه پوهیدل چي قانون او قانون جوړونه د یو هیواد په پرمختګ او لوړتیا او اداره کولوکی څه ارزښت لری ، ددی اساس او دلیل له مخی د افغانستان د خلکو د ژوند په بیلابیلو پړاوونوکی چي څه ګامونه اخستل شوی وه او یو لړ مقررات ، نظامنامی ، لایحې ، تعلیماتنامی ، اصولنامې او قوانین که څه هم د هیواد د چارو د سمبالښت د پاره وضع او تدوین شوی ول پوره عملي شوی نه دی. هغه یوه اندازه چي عملي شوی دی دا چي خلک د هغه د اهمیت او ارزښت سره دومره بلد نه وه د هغه تطبیق او اجراات ئی یو ډول ظلم او جفا بلل . ظلم او تیری په دی معنی چي د مقرراتو او قوانینو پلی کوونکی په خپله د قانون په ارزښت او اهمیت لکه څنګه چي لازم دی نه پوهیدل او پرټولو باندی ئی په یوډول نه پلی کول، د قدرت او زور خاوندانو پر ځان باندی د قوانینو او مقرراتو د پلی کیدو څخه اوږه خالي کوله، څکه د قانون پلی کول پر کمزورو او بیوزلو خلکو باندی ظلم او تیری ګڼل کیدی ، د بلی خوا څنګه چي استفاده کوونکو انسانانو او مامورینو په ډیر حرص د حکومت د غفلت او بی خبری څخه ناوړه ګټه پورته کوله د ضرورت وړ مقررات او قوانین ئی د خپل تباه کوونکو او شومو غرضونو او ځانګړو ګټو لپاره یو شمیر ناپاکه زورواکو ترېښنو لاندی کول چي پر کمزورو او یا بیوزلو خلکو باندی ظلم او تیری کیدی اوپه دی ډول قوانین او مقررات (پرته له دیني قوانینو) په غوځ ډول د پام څخه لویدلي اود هغوی پلی کول پرټول ولس او خلکو یو ډول او عادلانه نه وه نو یو ډول (ظلم اوجفا) بلل شوی وه او خلکو د پلی کوونکو د ځانګړو غرضونو او خپل سریو په نسبت رضایت او باور نه درلود څکه اصلاحي خوځښتونه په دی برخه کی احساس نه شول.

د عبدالرحمن خان د پاچاهى په دوره کى هم يو لړ اصلاحات او بدلونونه د امير شيرعلى خان د دورې په اصولو او مقرراتو کى رامنځ ته شول او د هغوى پلي کيدل په جدى توګه توصيه شوه خو داچي بيا هم په زور دملت پر ځينو خلکوپلي کيدل خلک ناراضه شول.
که څه هم دشهيد اميرحبيب الله په وخت کى يو شمير مقررات او لايحې په دولتى شورى کى چي په هغى کى وزيران ، شهزاده ګان ،اعيان (مشران) او اشراف غړيتوب لرل اوپه مياشت کي دوه يا څو ځلي دپاچا ترمشرتابه لاندي غونډي کولې تسويد او نافذ شول خو داچي دزوررورو د اغيزى له کبله تطبيقي اړخ ئي د ظلم او ستم لاندى پرکمزورو او بيوزلوباندى ډير وو په ټوليزډول خلک ني دمنلونه اوړه خالي کوله او د بلډي، تحفواوډاليو په ورکولوئى خانونه دقانون دمنګلو څخه خلاصول.
د خداى بخښلى غازى امير امان الله خان د سلطنت په دوره کى د ۱۲۹۷ څخه تر ۱۳۰۸ کاله پورى چي پوهنه يو اندازه پرېښنو دريدلې وه او د بلى خوا د پرمختګ او بدلون سره ورو ورو خلک د قوانينو ، مقرراتو او د لايحو په اهميت پوه شول ، ددى اړتياؤ پر بنسټ حکومت وکولاى شو چي ددولتى شورى په مدنى پرنسيبونو کى بدلونونه رامنځ ته کړي او په دى دوره کى وه چي د دولت شورى د خپل قطعى انتصابى شکل څخه راووته او يو شمير انتخابى غړى د ملت لخوا څخه په هغى کى شامل شول. همدا ډول په دى دوره کى څو لوئى جرګې په (هډه – جلال آباد، پغمان او کابل) کى دايري او د خلکو پر مشکلاتو او قانونى خنډونو تبصرى او بحثونه وشول او په تيرو اصولنامو کى يو لړ مهم بدلونونه منځ ته راغلل او سربيره پردى د وخت او زمان او چاپريال د غوښتنو سره سم يو شمير لايحې تسويد او تدوين اوددولت شوري او لويي جرګې ته وړاندي شوې چي ورروسته له هغه يو زيات شمير د هغوى چاپ او د پلى کيدو د پاره عملى ډګر ته راووتى چي تر يو حده پورى د اميد وړ هم وى.
په ۱۳۰۹ کال کى د خداى بخښلى اعليحضرت امير امان الله خان د سلطنت تر ړنګيدو او د سقاو زوى د بغاوت تر پيدا کيدو وروسته افغانستان ۹ مياشتى د کورنيو جګړو او ګډوډيو په يو ډير نازک او بحرانى حالت کى قرار درلود چي پدى دوره کى ډير ارزښتناکه سندونه د نووراغلو نااهلواو ناپوهو خلکو له خوا څخه د منځه ولاړل چي د هغوى په ډله کى يو لړ مقررات ، نظامنامى ، معتبر او مهم سندونه هم د منځه ولاړل.
په ۱۳۱۰ کال کى د محمد نادر شاه د نظامى چارو تر پياوړتيا وروسته د دولت شورى چي څه ئى

سره ئی سمون درلود را منځ ته کړاو همدارنګه امانیه دورې یو شمیر نظامنامی ( اصولنامې) تعدیل او یو لړ نوری اصولنامې ئی د هیواد په بیلابیلو برخو کی منځ ته راوړی.

دا چې په دی دوره کی په پوهنه او کلتوری برخوکی څه ناځه بدلونونه منځ ته راغلل خلکو ورو د قوانینو سره بلدتیا پیدا کړه ، د قوانینو او مقرراتو پلی کیدو ته یو اندازه چمتو شول د ملی شوری او اعیانو د پاره مناسب وخت په لاس ورغی چې په بیلا بیلو برخوکی قوانین او مقررات وضع کړی. په دی وخت او زمان کی که چیری د نوښتګرو مغزو او په بشپړه توګه ملی او وطن غوښتونکو خلکو څخه ګټه اخستیل شوی وای ، حکومتونو د پاچا په ګډون په رښتیا سره غوښتی وای چې دخلکو د ټولنیزو او اقتصادی چارو په برخه کی کار سرته ورسوی د هغوی دپاره ډیر مناسب وخت وه او ترځلویښت کالونو زیات د محمد ظاهرشاه د سلطنت کراره دوره وه چې د قانون جوړونی ، پر مخ تګ او د هیواد د ټولنیزو او اقتصادی چارو د سمبالښت د پاره ئی ښه مرسته کولای شول، خو پرخلاف ددې د څلویښتو کالونه په ډیر وخت کی د دولت ستنی پر پخوانی بنسټ باندی ولاړی او په بشپړ ډول ئی یوازی د شاهی رژیم د پایښت لپاره هلی ځلی کولی.

ملی شوری یوازی په نوم وجود درلوده ، ظاهراً د ټاکنو دقانون له مخی چې هرڅوک چې دولت غوره کول د حاکمانو او نائب الحکومه ګانو له خوا تعین ( ټاکل) او پلازمینی ته رالیږل کیدل څو په ملی شوری کی د ملت استازیتوب وکړی. په ملی شوری که هم رئیس او د اداری هیئت غړی د پاچا او صدراعظم په اشاره او غوښتنه ټاکل کیدل او هم کومی موضوعګانی چې ملی شوری ته وړاندی او تصویب کیدلی یو اړخیز او غیر مترقی وی چې د ملت د ستونزو یوه غوټه ئی هم نه شوه پرانیستلاي . پدی دوره کی قوانین هم په هغه غیرفعال ډول اوزړه شیوه پر بیوزلو او کمزورو باندی پلی او پر زورورو او هغه کسانو چې د شاهی رژیم پایښت ئی غوښت بیله د کاغذ پر مخ یو بی معنی لیکنی بل څه ارزښت نه درلود.

د هری دورې رئیسان د هغو کسانو د منځ څخه ټاکل کیدل چې په دولتی لوړو چوکیو کی به ئی کار کړي ؤا ود پاچا او د درباریانو به پوره د باور وړ وه او ملی شوری ته د ارګ په دننه کی و دربارته نژدی د دارالتحریر تر نظر لاندی په یو تعمیر کی ځای ورکړ شوی و. زیار ایستل کیدی چې د ملی شوری غړی د پاچا او صدراعظم په اشاره د حاکمانو او نائب الحکومه ګانو تر نظر لاندی د هغو کسانو څخه و ټاکل شی چې اصلا د قانون او قانونګذاری د معنی او مفهوم سره بلدتیا و نه لری . یواځی په تنخوا او نوم باندی بسنه وکړی اود پاچا او د وخت حکومت د باور وړ وی.

دې حالت تر ۱۳۳٦ او ۱۳۳۷ کلونو پورى دوام درلود ، که څه هم ورځ په ورځ خلک پوهيدل ، د لوستو او روڼ آندو زلميانو مترقى جنبشونه ( پرمختللي غورځنګونه ) تر سترګو کيدل ، داچي حکومت په پوره ډول پر اوضاع باندى برلاسى و د غورځنګ هره کړنه چي د دوى د نظر پر ضد وه هغه ئى ځپله . هغه وخت چي محمد داود صدراعظم او د وزيرانو رئيس وه په دي پلمه چي د شورى د پاره مناسب او د ناستي وړ ځاى وټاکل شى ، غوښتل ئى چي ملى شورى د شاهى ارګ له آغيزى چي ټوله د پاچا او درباريانو تر څارنى او کنترول لاندى وه خلاصه کړي او د هغوى لاس د ملت د پاکى ارادى د لمنى څخه لنډ کړى لمړي ملى شورى د دارلامان او وروسته ئى د تجارت اطاقو ( سودا ګري خوني )ميلمستون،اوسنى ملى شورى چي په علاو الدين کى موقعيت لرى ځاى پر ځاى او پدى توګه ئى تر يو کچى پورى وکيلان د دربار او درباريانو مستقيمى اغيزي څخه وژغورل او ملى شورى تازه په دى دوره ( ۱۰ او ۱۱) کى وکولاى شول نسبتاً يو لړ بنسټيز او ګټور قوانين او مقررات ترتيب او نافذ کړى. د صدارت په پيل کى د صدراعظم محمد داود اساسى هدف يو سالم ، بنسټيز ، اصلاحى او ټولنيز ريفورم منځ ته راوړل وه چي د وخت او زمان جبر دا کار منځ ته راوړى و او ددى سره يوځاى يو لړ بنسټيز او ګټور کارونه لکه د ښځو د نهضت اعلان او د هغوى د حجاب ليرى کول وؤ. دا هغه کار و چي څلويښت کاله وړاندى خداى بخښلى غازى اميرامان الله خان د هغه د پلي کيدو هيله درلوده، ولى هغه وخت چي ذهنيتونه ډير تاريک وو د افغانستان د دښمنانو لاس وهنى بريالى شوى او پاچا ئى د مطلقى ناکامى سره مخامخ کړ.

صدراعظم محمد داود خان د ښځو نهضت په برياليتوب سره اعلان کړ، د يو پلان شوى او باورى پاليسى پربنسټ ئى وکولاى شول لمړى د ښونځيو او بيا د عمومى حجاب ليرى کول پلي کړى او وروسته د ټولنيزو خپرونو له لارى روڼ آند او منور قشر ته د وينا آزادى تر هغه کچى چي ممکن او د زغم وړ وه ورکړه ، که څه هم د سياسى ګوندونو د پاره قوانين او مقررات موجود وؤ خلک ئى و هڅول چي د سياسى ګوندونو د بنسټ ايښودلو د پاره ګامونه پورته کړى لکه څنګه چي د وطن او ويښ زلميانو ټولنى او نور يو په بل پسى منځ ته راغلل او په دى توګه څنګه چي د سردارى او خانخانى نه ئى ښه زړه نه درلود او په باطن کى د شاهى کورنى په ځانګړى توګه بيا خپل د تره زامنو سردارولى او ورور څخه ئى خوشحاله نه وؤ د هغوى څخه ئى ليريتوب غوره وګاڼه ، څنګه چي محمد داود د ظالم حکومت په څنګ کى د

جامه ور واغوستله ، اقتصادى پلان ، بودجه او د دولت اساسى کړنلاره ئى د شورىپه واک کى کيښودل اود استازو نظر ئى وغوښت.

ملي شورى دُ اساسى کړنلارى تر مطالعي او د کابينى د غړو په برخه کى تر نورو وروسته په ډيره ميړانه اوجرئت سره يو لړ وړانديزونه حکومت ته وړاندى او د حکومت غړوته ئى د باور راى ورکړى چي دى کار د شورى دپاره يو نوى ور پرانيست او بل داچي د يو مطلق ديکتاتورى حاکم رژيم پرځاى د پوره دموکراسى دپاره يوه لويه لاره پرانستل شوه . په دى عصر کى د محمد داود حکومت د لمړى ځل لپاره پلان او پلانګذاري هيواد ته راوړه ، پنځه کلن اقتصادى پلان ئى جوړ او ملي شورى ته ئى وړاندى کړ چي د هغه له امله يو لړ مهم بنستيز ، اقتصادى ، صنعتي او کرهنيز کارونه تر اجرا لاندى ونيول شول او په همدى وخت کى د لمړى ځل لپاره حکومت خپله کلنۍ بودجه د مالي د وزير په واسطه ملي شورى ته وړاندى او د ملت د استازو نظر ئى د بودجې په هکله وغوښت.

( پاته دى نه وى چي تيرو حکومتونو هم هغه څه چي غوښتل په بودجه کي ئى ځايول د عوايدو او لګښتونو کوم قلمونه چي ئى زړه غوښتل جوړول ، ملي شورى د دى جرئت نه درلود چي د هغه شااوخوا کى بحث وکړى هغه رد يا تعديل کړى).

د محمد داود حکومت د ملي شورى څخه وغوښتل چي عادى او پراختيائى بودجه ، د مالي کال عوائد او لګښتونه تر څيړنې لاندى ونيسى د هغه په شاو خوا کى رغنده او اصلاحى نظريى وړاندى کړى او همدارنګه د امکان په صورت کى د بودجې ځينى برخى ليرى او يا تعديل کړى. بايد ووايو چي په دى کړنو سره د ملت د چټک او بنستيز پر مختګ د پاره شرايط برابر او په هيواد کى د يو دموکراتيک رژيم د بنسټ ايښودلو دپاره لاره هواره شوه چي ورروسته حکومت يو لړ وړاند يزونه يا چا ته وړاندى کړل خو د بده برغه هغه ونه منل شوه او حکومت استعفى ته اړ شوه ، خو پاچا دا نوبت په خپل لاس کى واخيست چي دکتاتورى رژيم په يو دموکراتيک رژيم بدل او په اساسى قانون کى بدلون راولى.

په ۱۳۴۱ کال کى ډاکتر يوسف د کابينى په جوړولو و ګمارل شو ، د هيواد مالي ، اقتصادى او سياسى چارى ښه نه وى د بلى خوا د شورى د (۱۱) دورې د کار پاى ته لږوخت پاتي و ، او د دولت غټو او وړو مامورينو چوراو تالان پيل کړى وه ، د ولتى ادارو خانته د غلو او لوټمارانو د سازمان بڼه غوره کړى وه ، بډى ، اختلاس ، احتکار ، قاچاق ، ډار اچونى او يو عجيبه شان ګډوډى منځ ته راغلى وه. په دى

تقنینی فرمان نافذ او د ملی شوری د (۱۲) دورې ټاکنی د ( ولسی جرګی) او ( مشرانو جرګی ) تر سرلیک لاندی پیل شوی .
د افغانستان بیوزله ولس فکر کاوه چې په رښتینی توګه د دکتاتوری رژیم په دموکراسی باندی بدل شو . د ۱۲ تقنینی دورې په ټول ټاکنو کی په ډیری خوښی سره برخه واخستل ولی متاسفانه بیا هم د استازو په توګه وټاکل شول او مجلس ( جرګې) ته ئی لاره پیدا کړه چې د دولت د ژمنو او د افغانستان د ولس دهیلو خلاف ئی د ولس په سر او مال لوبی وکړی.
که څه هم روڼ آندو د ۱۲ تقنینی دورې په څلور کلنه دوره کی په پرله پسی کوښښونو سره تر کومه ځایه چې ممکنه وه د خلکو د ذهنیتونو په ویښولو کی خپله دنده ترسره کړه ، خو د رغنده قوانینو د تصویب له لیاري او د حکومت پر کړنو د څارنی د لاری ونه توانیدل دموکراسی ته د عمل جامه ورواغوندی .
۱۳ تقنینی دوره د شوری د تورو دورو په حساب کی راځی څکه په دی دوره کی د حکومتی کارکوونکو (مامورینو) د تجربو څخه په استفادی کوښښ وشو څو داسی کسان په شوری کی غړیتوب پیدا کړی چې د ملت اراده کمزوری او هغه ملي هیلی چې د ظالم او جابر حکومت د راپرزولو لامل کیږی بریالي نشی.
لکه څنګه چې د ۱۳ تقنینی دورې د درو کالو او څو میاشتو په بهیر کی تر کومه ځایه چې د دولت هیله وه د یوشمیر استازو تطمیع او د یو شمیر نورو د ډارولو له لاری خپلی غوښتنی پر هغوی باندی ومنلی.
په دی دوره کی زور، ، اختلاس ، بډی اخستني، قانون ماتونی او بی عدالتی تر دی پوری ورسیدلی چې د هیواد اقتصادی حالت یو مخ وران او سیاسی او ټولنیز حالت بحرانی شو. یو شمیر استازو په بیلابیلو نومو نو سره خلګ او مامورین چور او تالان کول ، د حکومت او شوری تر منځ یو عجیب غوندی یووالی موجود او یو بل ته ئی په درنه سترګه کتله چې د حکومت ګوډاګیو ته ئی د هر ډول غیر ملی غسل آزادی ورکړی و، په ټولو برخوکی د ملت اراده په پوره ډول د یاده وتلی او د منخه تللی وه څو چې د هري خوا څخه د خلکو آواز پورته شو ، کرکه او عمومی نفرت تر دی ځایه را ورسیدی چې د ۱۳۵۲ کال د چنګاښ کودتائی منځ ته راوستله اود پاچا هي ناوړه رژیم ئی په جمهوری واړول شوه .

## د ملي شورئ د لمړۍ دورې بڼه

د ملي شورى لمړى دوره چي ظاهراً يو نمايشي دوره او يوازى نوم ئى شورى وه ، په اصل كى ټول استازى انتصابى او غير انتخابى وو، د قانون او قانون جوړوني د ژوند سره ئى پيژندګلوى نه درلودل يوازى په دى خوشحاله وو چي د دولت لوړو پوړوته ئى لارموندلى، د عزت او درناوى وړ وو ، نورد هغو دندو څخه چي يو استازى ئى د خپلو موكلينو په وړاندى لرى بى خبره وو. په هغه وخت استازو ته تنخوا اوكه چيرى كورنى ور سره واى د كور كرايه ، په كال كى دوه جوړى دريشى( د شورى د ځانګړى يونيفورم په ډول) د شورى د درزى په وسيله د استازو قد او اندام سره سم پسرلنى او ژمني جوړى ويشل كيدى.

د خپل وطن څخه د تګ را تګ پرمحال د لارى كرايه وركول كيدل د غونډو په وخت كى هره ورځ ورته ډوډى پخيدل. دغو ټولو امتيازاتو په حقيقت كى هغو استازو ته چي خپل قانونى حيثيت ئى نه پيژاند، ورپه ګوته كول چي حكومت هره موضوع چي شورى ته ليږى د دغو امتيازاتو په بدل كى ئى بايد ومنى.

موضوع فقط يو ځل د منشى له خوا څخه مجلس (جرګى) ته لوستل كيده او بس ، په اجندا كى شاملې موضوعګاني چي مجلس (جرګى) ته وړاندى كيدل د استازو نظر عين د دولت نظر او د دولت نظر عين د استازو نظر و.

د سهار د حاضرى پر وخت استازى چي هر ځاى وو ټولو يو شان دريشى اغوستلى په ډله ئيز يا يوازى توګه د شاهى ارګ سلامخانى ته ننوتل او په ترتيب سره پر هغه يو كسيز څوكيو چي د سلامخانى د تالار دواړو خواو ته يو بل ته مخامخ اينبودل شوي وى كښيناستل او كله چي د ملي شورى رئيس ( عبدالاحد خان ) ادارى غړى ( مرستيال ، منشيان او لنډ ليكونكى) تالار ته ننوتل ټول استازى تر هغه وخته پر پښو دريدل څو چي رئيس پر خپله څوكى كښينستى ، وروسته تر هغه استازى لكه د ښونځى زده كوونكى كښنيستل ، هيڅ چا ږغ نه كاوه د خبرو كولو حق يوازى هغه استازى درلود چي رئيس به د وړاندى شوى موضوع په هكله ورځنى وپوښتل هغه هم مشروط په شرطونو او هغه وخت چي ورته تاكل شوي وه استازى به ئي مخاطب كړى، يو څو لنډى او بى ربطه خبرى چي اصل مطلب سره به ئى اړه هم نه درلودل بى ترتيبه او په عاميانه توګه وكړى او د رئيس په اجازه به بيرته پر خپل ځاى كښيناست.

په دى ډول د هرى موضوع په هكله ( يو څو هغو كسانو چي رئيس او ادارى هيئت ورباندى باور درلود

د مجلس په دننه کې د داخلي دندوداصولو د (۱۸) مادې د حکم پر بنسټ چې د ۱۳۱۰ کال د لړم په میاشت کې په دې اړه تصویب شوي، په هغه وخت کې چې یو استازی خبرې کولې حتي (درې غوړې) چې د خبرو کونکي استازی د خبرو وخت شمیري نه به واو که چا خبرې کړې وای د مجلس له خوا ورته نصیحت او هغه ته د خبرو د نه کولو توصیه کیدی ، د مجلس منشي (مجلس منشیان) د ټولګی مشر حیثیت درلود که چیرې یو استازی د مجلس په وخت کې خندلی وای او یا د بل سره ئې خبرې کړیوای نوم ئې د منشیانو له خوا ثبخه لیکل کیدی او رئیس ته ئې ورکاوه چې د مجلس څخه وروسته نوموړی استازی ته اخطار ورکول کیدی.

په مجلس کې ناستو استازو د تالار څخه د وتلو حق نه درلود ( که د ضرورت رفع کول چې یو طبیعي امر دی هم واي). د داخلي دندو د ۴۴ مادې سره سم د سګرټو د څکولو اجازه نه وه ولې د څوکیو په هر قطار کې چې استازو قرار درلود د نسوارو دتو( تف) کولو دپاره تف داني موجودې وې.

چابک لیکونکی چې د ( مخفف لیکونکو) په نامه یادیدل او لږ څه تر استازو لوستی وه مطلبونه ئې لیکل د اصل مطلب د روحیې سرسم ئې لنډ ریوټ جوړ او پر څو برخوئې ویشي او د نظر وړ استازی په نامه چې خبرې به ئې کړې وې نسبت ور کاوه اود مجلس منشي ژرترژره هغه د فیصدی ، قطعي او اکثریت رائې لیکلې.

کله چې به د رئیس ږغ ( هغه وخت مکروفون او لوړ ږغي وسیلې موجودې نه وې) پورته شو څنګه چې فضا کاملاً ارامه او کراره وه استازي پوهیدل چې د رای اچونې وخت دی ( د هغه ماشوم په شان چې زده ګړې ازموینه ئې تیره کړې وي د تفریح او رخصتي د زنګ انتظار ایستی) د موضوع د راي اچونې تر اعلان وروسته به ئې خپل لاس تر اوږې پورته کاوه او خپله قطعي رایه ئې ښکاره کوله په دې وخت کې هیڅ استازی نه پیدا کیدی چې مخالف وی (په وړاندې شوې موضوعګانو کې مخالفت نه بخښونکې ګناه وه ) وروسته د وړاندې شوې موضوع تصویب د رایو په اکثریت سره اعلانیدی او غونډه پای ته رسیده .

په دې وخت کې استازی لکه د ښونځی زده کونکي د تالار څخه وتل په برنډه او د سلامخانې د بڼ په چمن کې ئې خبرې کولې ، وروسته ئې د لیونیو په شان د ډوډې خوړلو پر خونه حمله کوله او په څو د ګوتو په شمیر دقیقو کې ډوډې خوړل ختم د ماسپښین د لمانځه تر ادا کولو وروسته سره خواره کیدل.

د حکومت د ۱۳۱۱ کال اصولنامه په خپله د دې دورې پر کړنو داسې اعتراف کوی:( دا دوره په اصل

### د ۱۳۱۱ څخه تر ۱۳۱۲ کال پوری د شوری د لمړنی دورې اداری هیئت

۱. ع – ج عبدالاحد خان د کابل استازی د شوری رئیس .

۲. ع – حاجی عبدالحق خان د هرات د مرکز استازی د رئیس نائب.

۳. د رئیس دوهم نائب کمبود

۴. لمړی منشی فقیر محمد خان

۵. دوهم منشی ....................

### د ۱۳۱۰ څخه تر ۱۳۱۲ کال پوری د ملی شوری د لمړنی دورې د استازو لست

| | |
|---|---|
| ۱. ع – ج عبدالاحد خان د ملی شوری رئیس | د کابل د مرکز استازی |
| ۲. ع – ص حاجی عبدالحق خان د ملی شوری معیین | د هرات د مرکز استازی |
| ۳. ص – غلام محی الدین خان | د کابل د مرکز استازی |
| ۴. ص– حاجی سیف الدین خان | د شیوکیو د سهاک استازی |
| ۵. ص– عبدالحبیب خان | د پغمان استازی |
| ٦. محمد عمر خان | د لوګر استازی |
| ۷. عبدالقیوم خان | د وردګو استازی |
| ۸. عبدالرشید خان | د میدان استازی |
| ۹. عطاالحق خان | د سیغان استازی |
| ۱۰. سید محمد حسن خان | د بامیانو استازی |
| ۱۱. عبدالستار خان | د کوز چاریکارو استازی |
| ۱۲. محمد سرور خان | د تګاب استازی |
| ۱۳. عبدالروف خان | د کوهستان استازی |
| ۱۴. حاجی ایشان خان | د پنجشیر استازی |
| ۱۵. محمد سرور خان | د سرخ پارسا استازی |

| | |
|---|---|
| ۲۱. میر محمد علیخان | د هزاره جاتو استازی |
| ۲۲. حبیب الله خان | د سروبی استازی |
| ۲۳. میرزا سیف الدین خان | د دامانی کوچی استازی |
| ۲۴. عبدالصمد خان | د قندهار استازی |
| ۲۵. نظر محمدخان | د کشک استازی |
| ۲۶. محمد شریف خان | د قلات استازی |
| ۲۷. حاجی عبدالعزیز خان | د گرمسیر استازی |
| ۲۸. محمد شاه خان | د کدنی استازی |
| ۲۹. بازمحمد خان | د دیراهود استازی |
| ۳۰. داد محمد خان | د لالا ترین استازی |
| ۳۱. حاجی محمد عثمان خان | د دهله استازی |
| ۳۲. احمد شاه خان | د ارغستان استازی |
| ۳۳. عبدالرزاق خان | د کندهار د زمینداورو استازی |
| ۳۴. محمد انبا خان | د ارزگان استازی |
| ۳۵. حاجی میر حسین خان | د گرزاب استازی |
| ۳۶. غلام حیدر خان | د هرات د مرکز استازی |
| ۳۷. امین الله خان | د غوریانو استازی |
| ۳۸. عبدالکریم خان | د مزارشریف د مرکز استازی |
| ۳۹. میرزا محمد قاسم | د علی چوپان استازی |
| ۴۰. ملا حیدر قل | د سنگچارک استازی |
| ۴۱. ملا محمد ناصر | د تاشقرغان استازی |
| ۴۲. محمد شریف | د اقچی استازی |
| ۴۳. محمد امین | د بلخ استازی |
| ۴۴. ملا قربانشاه | د دولت آباد استازی |

| | |
|---|---|
| ٥٠. حاجی محمد کریم | د نهرین استازی |
| ٥١. ملا شاه مردان قل | د امام صاحب استازی |
| ٥٢. میر شاه سعید | د اندراب استازی |
| ٥٣. ملا عبدالاول | د تالقان استازی |
| ٥٤. شاه عدرالمجید | د بدخشان د مرکز استازی |
| ٥٥. میرزا رحمت الله | د رستاق استازی |
| ٥٦. شرین بیگ | د کشم ودرایم استازی |
| ٥٧. ملا محمد نبی | د ینگی قلعه استازی |
| ٥٨. میر فضل احمد | د چال اشکش استازی |
| ٥٩. عبدالعلیم | د جلال آباد د مرکز استازی |
| ٦٠. ملک عبدالرسول | د سرخرود استازی |
| ٦١. عبدالله | د مهمند درې استازی |
| ٦٢. میرزاده خان | د شینوارو استازی |
| ٦٣. میان عبدالرحیم خان | د کامی استازی |
| ٦٤. عبدالله | د لغمان استازی |
| ٦٥. شیر محمد | د نورستان استازی |
| ٦٦. میرزا محمد خان | د خوګیانو استازی |
| ٦٧. دین محمد | د حصارک غلجائی استازی |
| ٦٨. ملا عبدالخالق | د کنړ د مرکز استازی |
| ٦٩. ملا عبدالغفار | د بر کنړ استازی |
| ٧٠. عبدالحنان | د پیچ درې استازی |
| ٧١. ملا میر گل خان | د روداتو استازی |
| ٧٢. ملا محمد عظیم خان | د کوز کنړ استازی |
| ٧٣. ملک عابدین خان | د ننګرهار استازی |
| ٧٤. نادرشاه خان | د جنوبي استازی |

| | |
|---|---|
| ۷۹. حاجی نور خان | د جنوبی استازی |
| ۸۰. سید نورشاه خان | د جنوبی استازی |
| ۸۱. نیاز محمد خان | د څاځیو استازی |
| ۸۲. وزیر محمد خان | د ځمکنیو استازی |
| ۸۳. سلطان محمد خان | د فراه استازی |
| ۸۴. محمد انور خان | د فراه استازی |
| ۸۵. میرزا عزت الله خان | د میمنی استازی |
| ۸۶. محمد ابراهیم خان | د میمنی استازی |
| ۸۷. میرزا قهرمان خان | د قیصار استازی |
| ۸۸. سلیمانقل | د درزاب استازی |
| ۸۹. ملا محمد یعقوب خان | د اندخوی استازی |
| ۹۰. عبدالغنی خان | د اجرستان استازی |
| ۹۱. حاجی عبدالقدوس خان | د چغچران استازی |
| ۹۲. سید شاه میرزا حسین خان | د یکا ولنګ استازی |
| ۹۳. ملا محمد یوسف خان | د سرپل استازی |
| ۹۴. ملا علی محمد خان | د غور استازی |
| ۹۵. غلام دستګیر خان | د ترنک او جلدک استازی |
| ۹۶. میر حسن خان | د منګلو استازی |
| ۹۷. حاجی ملا شرین | د سبزوار استازی |
| ۹۸. غلام حیدرخان | د نجراب استازی |
| ۹۹. محمد فاضل | استازی |
| ۱۰۰. میر عالم | د جرم استازی |
| ۱۰۱. محمد یعقوب | د کشک ګلران استازی |
| ۱۰۲. حضرت نور خان | د بالا مرغاب استازی |

| | |
|---|---|
| ۱۰۸. عبدالوهاب خان | د غور استازی |
| ۱۰۹. محمد خان | د شهرک استازی |
| ۱۱۰. شاه منصورخان | د درواز استازی |
| ۱۱۱. محمد ضمیر خان | د واخان استازی |
| ۱۱۲. خدا رحیم خان | د کوچی دامانی استازی |
| ۱۱۳. بهرام پگ خان | د قلعه نو استازی |
| ۱۱۴. امین الله خان | د مقر استازی |

## د (۱۳۰۹) د دولت اساسی اصول د افغانستان د علیه دولت کلی اصول

۱. د افغانستان دین د اسلام مقدس دین او عمومی رسمی مذهب ئی حنفی (ر ح) دی ، د افغانستان پاچا باید د دی مذهب لرونکی وی ، نور دینونه لکه هندو او یهود چي په افغانستان کی دی په دی شرط چي عمومي اداب او هوساینه ګډوډه نکړی تر امنیت لاندی نیول کیدی شي.
۲. د افغانستان علیه دولت د خپلو کورنیو او بهرنیو چارو په اداره کی خپلواک او د هیواد ټولی سیمی او قطعات د لوړ مرتبه ملوکانه تر امر او اداری لاندی د یو واحد وجود په ډول تشکیل شوی او په هیڅ ډول د هیواد په ټوټو کی فرق راوستل کیدی نشي.
۳. د افغانستان پلازمینه د کابل ښار دی.
۴. د افغانستان رسمی بیرق د تور، سره او زرغونه الوان څخه جوړ چي منځ کی ئی د غنم وږی ، محراب او منبر دی.

د پاچا حقونه :

۵. د هغو خدمتونو او سرښندنی د قدر کولو په نښه چي اعلیحضرت نادرشاه افغان د هیواد د خلاصون او خپلواکی د پاره کړی ، د ظلم او تیری بنسټ ئی په افغانستان کی د منځه وړی د افغانستان ټول ملت خپل شاهانه ذات د هیواد یو صحیح او لایق پاچا ګڼی او په ډیر قدر او درنښت ئی ورسره تعهد کړی او کوي ئی ، همایونی ذات د افغانیه مستقل سلطنت پر تخت د ناستی پر وخت د ټولو استازو او د افغانستان شریفو هیواد والو په وړاندی ژمنه کړیده چي د خپل شاهانه حکومت اوامر د حنفی (ر ح) مذهب او نبوی (ص) شریعت د مفتی بهای شرع شریفی او هیواد د اساسی اصول سره به ئی سم اجرا او د افغانستان آزادی او ساتنه د خپلو مهمو دندو څخه بولی، ملت او هیواد ته به رینښتنی او د پورته شرایطو د اجرا څخه به سرغړونه نه کوی.
نو ځکه د افغانستان لوړپوړی ، شریف او نجیب ملت یو موټی کیږی او د افغانستان پاچاهی د دی پرمختګ غوښتونکی پاچا کورنی ته د پاچا په توګه د والا حضرت ټاکل د افغانستان د ملت لخوا څخه ورته انتقالیږی .
**تبصره :—** کورنی د نارینه اومشزاولاداو ورور څخه عبارت ده .

د محمدی (ص) ښکاره شرعی او هیواد د اساسی اصولو د مقرراتو پر اساس پاچاهی کوم او د روحانی اولیا و (رض) څخه مرسته غواړم".

۷. په خطبو کی د پاچا نوم اخستل ، د پاچا په نامه د سکی چاپ ، د رتبو او منصبونو ټاکل ، نښان ورکول، د صدراعظم ټاکل د وزیرانو منظوری ، تبدیلی او لیری کول د ملی شوری د اصولو د مصوبی تصدیق ، دهغوی د مرعیت او ساتنی اعلان د شرعی حکمونو ساتنه او اجرا ، د افغانستان د ټول عسکری پوځ اصولوقوماندانی ، دجګړې اعلان، دسولي تړون اوپه ټولیزه توګه ټوله دبخښني اوتعزیري مجازاتوتړونونو

د ښاغلی پاچا د حقونو څخه شمیرل کیږی.

۸. د شاهی لګښت پیسی باید د هیواد په بودجه کی وټاکل شی.

۹. ټول هغه کسان چي په افغانستان کی اوسی له دینی او مذهبی توپیر پرته د افغانستان تبعه ګڼل کیږی.

۱۰.د افغانستان ټول وګړی د دولت په لیکلی سیاسی اصولو،دینی او مذهبی چارو مکلف او مقید او د خپلو روا حقونو خاوندان دی.

۱۱.شخصی آزادی د هر ډول تیری څخه خوندی ده هیڅ څوک د شرعی امر او وضع شوو اصولناموپرته مجازات کیدای نشی ، په افغانستان کی دمرئیتوب او اسارت اصول منع دی هیڅ نر او ښځه یو بل د اسیر ( مرنی ) په توګه ټاکلاي نشی.

۱۲. د افغانستان وګړی په تجارتی ، صنعتی او کرهنیزو چاروکی د وضع شوی اصولو سره سم آزاد دی.

۱۳. د افغانستان ټول وګړی د دولت د وضع شوی اصولو او غرا شریعت په وړاندی د هیواد په حقونو او دندو کی یو شان حق لری.

۱۴ .د افغانستان ټول وګړی د پوهی او لیاقت له مخی د حکومت د اړتیا سره سم په کارګماریدلای شی.

۱۵. په افغانستان کی د هر وګړی مال او ملک خوندی دی که چیری یو ملک د ټول ګټی په مقصد د دولت پکارشی د خاصی اصولنامې او شرع شریفی د حکم سره سم لمړی د هغه بیه خاوند ته ورکول کیږی وروسته ملک اخستل کیږی.

۱٦. د افغانستان د هروګړی ځای او کور د هر ډول تیری څخه خوندی دی ، د حکومت او یا نورو له خوا څخه بی له شرعی حکمونو او وضع شوی اصولنامو پرته ناخبره د چا کورته ننوتلای نشی.

۱۷. د خلکو د مال او ملک ضبطول منع دی د هغو کسانو د ملک نه پرته چی په خارج کی اوسیږی او

۱۹. شکنجه او د جزا نور ټول ډولونه منع دی ، شرعی شریفی او د دولت د اصولنامو څخه بهرهیڅ چاته جزا نه ورکول کیږی.

۲۰. د افغانستان دټولو میشتوماشومانودپاره لمړني زده کړي حتمي اولازمي دي.

۲۱. په افغانستان کی د اسلامی علومو زده کړه آزاده ده ، د افغانستان تبعه عموماً او خصوصاً د اسلامی علومو د زده کړی لپاره باید مجهز او ماذون وی ، خو پردی کسان چپ له هغو کسانو چي د صنایع او فنونو د رواجولو او یا د پردیو ژبو د زده کړی د پاره ګمارل کیږی ، د هیواد په دننه کی د مدرسو او ادارو د جوړولو او اداره کولو جواز نلری.

۲۲. د افغانستان ټول ښوونځی د حکومت تر نظارت او څارنی لاندی دی ترڅو چي د هغوی د ښوونی او روزنی چاری د اسلام د عقیدی د مصطلحاتو خلاف نه وی او د عملیه ، فن اوصنایعو د ګټو سره سمون ولری، خو د اعتقادی او مذهبی چارو د زده کړو اصول چي په اهل ذمه پوری اړه لری اخلال کیدای نشی.

۲۳.مطبوعات او کورنی خپرونی چي د مذهب خلاف وی د خاصی اصولنامې له مخی آزادی نلری ، د خبرونو خپرول یوازی د افغانی اتباعو او حکومت حق دی، هغه بهرنی مطبوعات اوجریدې چي د افغانستان مذهب، سیاست او حکومت پر ضد ګډ وډی را منځ ته نکړی داخل ته ئی راوړل آزاد دی.

۲۴. د افغانستان د تبعه وه د شخړو او نورو چارو او پریکړو چي په عدلیه محکمو او رسمی دائرو پوری اړه لری که چیری د اړونده دائروپه حکم او پریکړه قناعت ونه لری کولای شی چي لوړو مقامونوته تراړونده وزارت که بیا هم قناعت و نه لری د عظمی صدارت مقام او خپله شاهانه حضور ته د غور دپاره عرض کولاي شي.

۲۵. ټا کل شوي مالیات اومحصولات دځانګړواصولنا مو سره سم اخیستل کیږی.

۲٦. د دولت د اصولنامې نه بهر د هیڅ چانه هیڅ شی اخستل کیدای نه شی

# ملي شورى

**د مجلس تشکيلات :**

**۲۷. د ملي شورى مجلس د همايونى اعليحضرت په اراده او پريکړه او په کابل کى د ۱۳۰۹ کال د دائري شوى جرګې د پريکړى له مخى جوړه او موسسه جرګه ده .**

**۲۸. دا مجلس په عمومى ډول د هغو کسانو څخه جوړ دى چې د افغانستان په سياسى ژوند کى ګډ او هيواد د ټول ولس استازى وى.**

**۲۹. د ملي شورى ترکيب او جوړښت د هغو استازو څخه عبارت دى چې د کابل او نورو ولايتونو ، حکومتيو او علاقه داريو څخه ټاکل کيږى او د دائريدو ځاى ئى پلازمينه دى.**

**۳۰. د ملي شورى د استازو شمير د ټاکنو د پريکړى د اصولنامې له مخى څرګنديږى.**

**۳۲. د ملي شورى د کار او رخصتي وختونه د مجلس د داخلي اصولنامې له مخى مشخص او محدود کيداى شي ، د رخصتي په وخت کى که چيرى حکومت د کومى اصولنامې وضع کولوته اړشى دا اصولنامه په لنډمهاله توګه د حکومت له خوا تصويب او د پاچاهي فرمان له مخى د اجرا وړګرځيداى شي. د کار په وخت کى که چيرى لنډمهاله اصول د ملي شورى لخوا تسليم شى دتل پاتي اصولو په لړکى تر هغه وخت څو چي د نوموړى مجلس لخوا تعديل يا رد کيږي.**

**۳۳. د ملي شورى مجلس د مهمو مسئلو او پريکړو د پلى کولو د پاره د رخصتيو په ورځو کى هم دائريدلاى شي که چيرى د بحث وړپر مسئلى د وخت د تيريدو ويره وى او د عمومى جرګې د دائريدو امکان نه وى يوازى د پلازمينى او د هغه شاوخوا استازى جلسه دائر ولاى شى.**

**۳۴. هغه وخت مذاکرى پيل کيداى شي چي لږ تر لږه نيمائى غړى حاضر وي او د مقرراتو تصويب د رايو د ډيروالي په بنسټ وى.**

**۳۵. د ملي شورى د مجلس د پرانيستلو په وخت کى هر يو په آزاده توګه خپله وينا د باچا په وړاندى عرض او د قرين الشرفه همايونى له خوا اوريدل کيږى.**

**۳٦ . لمړى د مجلس غړى د وار په مراعتولو سره قسم يادوى او قسم نامه لاسليک کوى.**

**قسم نامه :**

**۳۷. موږ لاندى لاسليک کونکى د هغه باور له مخى چي ملت او حکومت پرموږ کړيدى په لوى خداى او**

۳۹.د ملي شورى د جرګې ټولي خبرى اترى چي د هغوى پايلي تر اجرا لاندى نيول كيږى ښكاره دى، د جريدو استازى ، ليدونكى د غونډو د داخلي اصولنامې په رعايت سره يوازى د مذاكراتو د اوريدلو حق لرى.

۴۰. د ملي شورى جرګې خپلى داخلى چارى لكه د لمړى او دوهم رئيس ، د تحرير پلاوي او نورو څانګو ټاكل او مذاكرو اصول او نور اجزا د داخلي اصولنامې سره سم تنظيموى.

۴۱. ټول هغه ضوابط او اصول چي د هغوى شته والي او وضع كيده ئى د حكومت د بنسټ د ټينګولو او د هيواد د چارو د نظم د پاره اړينى وى د ملي شورى د جرګې له خوا تصويب كيږى.

۴۲. د مالي چارو تسويد ، د فروعاتو او عوارضو رد يا منل او هم نوى مميز بها چي دولت د هغه دپاره ګام اخلى د جرګې له خوا تصويب كيږى.

۴۳. د هيواد د بودجې كره كتنه او تصويب د ماليې د وزارت لخوا تر جوړولو او وړانديز وروسته د ملي شورى دنده ده .

۴۴. د نوو اصولنامو وضع او د مقرررواوقوانينو تعديل يا فسخ كه د مجلس يا د وزيرانو له خوا شوى وى د ملي شورى په تصويب سره صورت نيولاى شي.

۴۵.د لويو شركتونو او كمپنيو د جوړولو امتياز په هرډول او عنوان چي وى د ملي شورى له خوا تصويب كيږى.

۴۶. د مقاولاتو او معاهداتو د انحصار د امتياز وركړه كه تجارتى ، صنعتى ، كرهنيز او نور كه د كورنيو او يا بهرنيو له خوا وى د ملي شورى د جرګې په تصويب سره وركول كيږى.

۴۷.كورنى يا بهرني دولتي پور په هرعنوان او نامه چي وى د ملي شورى په خبرتيا او تصويب سره به اخستل كيږى.

۴۸. د اوسپنى د پټلى غزول او پر لاروكريږ اچول د دولت په لګښت يا د بهرنى او كورنى شركتونو او كمپنيو له خوا ټوله د ملي شورى د مجلس په تصويب پورى اړه لرى.

۴۹. د ملي شورى مجلس حق لرى چي په مناسب وخت كى همايونى حضورته عريضه وړاندى كړى خو عريضه يو ګډه شپږ كسيز پلاوي چي نورى طبقي ئى د خپل منځ څخه ټاكي د رئيس په ګډون وړاندى كولاى شي.

۵۰. وزيران د ملي شورى د غونډو د مذاكرو د اوريدو په خاطر په غونډه كى حاضريدلاى شي او حق

۵۱. د هر ډول نوو قوانينو وضع کيدلو ته چي اړتيا پيداشي د وزارت له خوا تجويز او ليکل کيږی د وزيرانو يا صدراعظم له خوا دملی شوری جرګې ته وړاندی اود جرګې ترپريکړی ورسته د پاچا په تائيد ښکلی او د اجرا وړ ګرځی.

۵۲. د مجلس رئيس او غړی کولای شی چي شخصاً پخپله يا د غونډي د لسو غړو يا د وزير په وړانديز د کتونکو او جريدو د استازو د حضور پرته پټه غونډه دائره کړی او همدارنګه کولای شی يوه پټه غونډه د جرګې د يو شمير ټاکل شوو استازو په ګډون چي د مجلس نور غړی په هغه کی د ګډون حق ونه لری ترتيب کړی ، د انجمن يا پتی جرګې پايله هغه وخت د اجرا وړ ده چي په دواړو صورتونو کی هغوی د بحث وړ مسئله د ټاکل شوو د څلور څخه د درو برخو په حضور بحث او مذاکره شوی او د رايو په اکثريت منل شوی وی په هغه صورت کی چي مطلب په سری غونډه کی ونه منل شی په مجلس کی نه مطرح کيږی او دچوپتيا حالت غوره کوی.

۵۳. په هغه صورت کی چي سری غونډه د رئيس په غوښتنه دائره شوی وی واک لری چي مذاکرې په يو مناسبه پيمانه و ټولو ته ورسول شی او که چيری غونډه د وزير په غوښتنه وی په هغه صورت کی د مذاکراتو د پايلو بربندول د وزير په اجازه پوری اړه لری.

۵۴. وزير خپل وړاندی شوی مطلب که څه هم پر هغه باندی هرڅونه بحث شوی وی حق لری چي د مجلس څخه ئی را واپس کړی. خو که چيری د دوی وړانديز د مجلس په غوښتنه وی د مطلب د استرداد دپاره د مجلس هوکړه شرط ده.

۵۵. که د ده وړاندی شوی لايحه مجلس و نه منی په خپلو ملاحظاتو سره هغه بيرته راګرځوی او دا لايحه د دوهم ځل لپاره هغه وخت وړاندی کيدلای شی چي وزير د مجلس ملاحظات رد او يا ومني.

۵٦.د ملی شوری د غړو لخوا د رايو ښکاره کول د مطلب د رد يا منلو په هکله بايد واضح او روښانه وی هيڅ څوک نشی کولای چي دوی د رای په ورکولو تشويق او يا دوه زړه کړی د.مجلس د غړو د رد يا منلو ظاهری نښي توری او سپينی پاڼی دی چي د کتونکو او جريدو د استازو د پوهاوی وسيله هم کيدای شی.

**د مجلس لخوا د مطلب وړانديز:**

۵۷. هرهغه مطلب چي دمجلس دغړو له خوا وړاندی کيږی هغه وخت دمذاکری وړدی چي لږترلږه د مذاکری د غړو څخه څلورمه برخه نوموړی مطلب تصويب کړی، په دی صورت کی نوموړی مطلب په

مجلس کی د مذاکرى وړ مواد د يو لايحې او خپل نظر سره يوځاى د مجلس رئيس ته وړاندى کوى او د رئيس په اجازه په مجلس کی د مذاکرى د پاره وړاندى کيږى.

هغه مواد چې نيمګړى وى يا د جرګې مذاکره د هغه په برخه کی ضرورى نه وى ، هغه د رئيس لخوا دذکرسوودلايلوسره يوځاي اړوند وزارت ته ليږل کيږى ، د ځيرني د انجمن غړى به لږترلږه لس تنه وى.

۵۹. هغه مطالب چې د خپل اصل له مخی جرګې ته وړاندى کيږى که چيرى په وزير پورى اړه ولرى د نوموړى لايحې د کره کتنى او مذاکرى په وخت کی اړونده وزير ته خبر ورکول کيږى چې شخصاً پخپله او يا معين ئي حاضر وى ، دوى ته پرته له اړينو مطالبوڅخه لس پنځلس ورځې مخکې بايد خبر ورکړل شي.

۶۰. په هغه صورت کی چې وزير د کوم مصلحت له مخې د جرګې له خوا پر وړاندى شوى مطلب موافقه ونه لرى ضرور ده چې خپل عذر مخامخ جرګې ته روښانه او غوندړه قانع کړى.

۶۱. که د ملي شورى مجلس د يو وزير څخه توضيحات وغواړى په جواب ورکولوئى ناچار او مسوول دى بيله معقول عذره د جواب شا ته د اچولو او ځنډولو حق نلرى.

۶۲. که چيرى د يو سړى پرعرض باندى په رسمي دائر وکی د اړونده وزارت تر مرکز پورى غور ونه شي خپله د استازى په واسطه د شورى جرګې ته شامل او دا ډول عريضي د غور او کره کتنى لپاره د صدارت مقام ته ليږل کيږى.

۶۳. که چيرى پاچا مړ شي او مجلس رخصت وى هرو مرو بايد مجلس دائر شي او د مجلس دائريدل د پاچا تر مړيني وروسته له شل ورځو څخه بايد ونه ځنډول شي.

۶۴. که چيرى د پاچا تر وفات مخ کی د استازود استازيتوب دوره پاى ته رسيدلي وى او د مړيني په وخت کی نور استازى نه وى ټاکل شوى مجلس د زړى دورې د استازو په واسطه دائريږى.

۶۵. هغه مواد چې د ملي شورى په مجلس کی تصويب کيږى بايد د اسلام د مبين دين او هيواد د سياست سره مخالفت ونه لرى.

۶۶. د ملي شورى ټولي مقررى او پريکړى د شاهانه ذات تر لاسليک وروسته د اجرا وړ دى .

**د اعيانو مجلس:**

۶۷. د اعيانو مجلس د تجربه لرونکو او کارپوهو کسانو څخه جوړ دى چې د قرين الشرفه پاچا له خوا راساً تعين او ټاکل کيږى او د غوندو ځاى ئې کابل دى.

۶۹. د ملي شورى د جرګې په پيل کى که چيرى د اعيانو جرګه نه وى شروع شوى ، د ملي شورى د غونډو پريکړي نه ځنډول کيږى بلکه د همايونى تر تائيد وروسته د اجرا وړدى.
۷۰. هغه مطلبونه چي د اعيانو غونډه ئى تصويبوى او د ملي شورى جرګې ته ليږل کيږى په هغه صورت کى چي د مجلس د منلو وړ ونه ګرځى د مطلب د اهميت په پام کى نيولو سره بله ګډه غونډه د مجلسونود غړو څخه جوړيږى. د دى مجلس غړى چي په برابر ډول ټاکل کيږى لږ ترلږه به شل کسان وى.
ټاکل شوى جرګه پر اختلافي مسئله غور او څيرنه کوى خپل نظر د ملي شورى جرګې ته وړاندى کوى که چيرى د ملي شورى غونډه د ټاکل شوى جرګې سره همږغي نه شي موضوع د ملوکانه ذات حضورته وړاندى او دلوړمقام په اراده پريکړه کيږى.
د ولايتونو مشورتى جرګې:
۷۱. د غټو او لويو حکومتيو او نائب الحکومه ګيو په مرکزونو کى يويو مشورتى مجلس جوړيږى.
۷۲. د ټاکل کيدو ډول، د غړو شمير او د دى مجلس دندى په ځانګړى اصولنامه کى روښانه کيږى.
۷۳. د هيواد اجرائيه چارى د هغو وزيرانو په واسطه چي د صدراعظم له خوا ټاکل کيږي اود ملوکانه حضور له خوا منظوريږى اداره کيږى.
۷۴. د وزيرانو د پلاوي رياست خوندى دى صدراعظم او د صدراعظم په غياب کى د لمړى وزارت وزير د رياست دنده تر سره کوى.
۷۵. څوک چي مسلمان او د افغانستان تبعه نه وى د وزارت مقام نشي تر لاسه کولاى.
۷۶. هر وزير د دولت په عمومي سياست کى په کلي او ځانګړى توګه د اړونده وزارت په وظيفوى چارو کى ملي شورى ته مسوول دى . نوځکه عاليه شاهانه ذات غير مسول دى.
۷۷. ( د وزيرانو مسووليت ) د دوى په برخه کى سياست به داصول لخوا ټاکل کيږي.
۷۸. وزيران خپلى اړوندى چارى د خپل واک په اندازه اجرا او ترهغه لوړى چاري د صدراعظم په حضور د خپلى دندى د واک په درجه او تر هغه لوړى مسئلي دملوکا نه حضور ته عرض او هدايت اخلي.
۷۹. که چيرى د دولت يو وزير د خپلى رسمى دندى په چوکات کى د سرغړونى په تور تر شک لاندى راشي د هغه د محاکمى ځاى عالى ديوان دى ، او نورى د وزيرانو ځانګړى دعوى چي ددوي د ماموريت د دندى نه بهروي د نورو وګړو په شان عدلى محاکمو ته مراجعه کوى.

۸۲. د مامورينو او وزيرانو دعمومى احوال د څيړنى لپاره يو څيړنيز پلاوي د څانگړي لايحې سره سم د شاهانه حضور په اجازه د ملى شورى څخه تعيين او ټاكل كيږى.
۸۳. د دائرو او وزارتونو تشكيل او دندى د اساسى تشكيلاتو په اصول نامه كى روښانه شويدى.

د مامورينو حقونه:
۸۴. ټول مامورين د هغه موادو سره سم چي په څانگړى اصولنامه كى روښانه شوَيدى په هغه ماموريت كي چى د ده د لياقت سره وړ او مناسب وى تعيين او ټاكل كيږى ، څو چى يومامور د خپلى دندى څخه استفعى نه وى كړى او يا د دولت له خوا د يو ضرورى امر له مخى تبديل يا موقوف شوى نه وى ، اصلاً موقوف او لرى كيداى نشى، هغه مامورين چي د خپلو كړو او خدمت له لورى ښه ښكاره شى د څانگړى اصولنامې سره سم په دنده كى د دوام د ماموريت رتبى او پرمختگ حق تر لاسه كولاى شى.
۸۵. ټول مامورين په هره رتبه چي وى د اصولنامې سره سم د لوړ آمر د اوامرو په منلومكلف دى ، لوړ آمران ترخپل لاس لاندى مامورينو باندى داصولو خلاف هيڅ يو امر اجرا كولاى نشى كه چيرى د لوړو امرانو له خوا تر لاس لاندى مامورينو باندى د اصولنامې خلاف د كوم كار د اجرا امر وشى تر لاس لاندى مامورين مخكى له اجرا نه بايد د وزارت مركز او تر عظمى صدرات پورى خبر وركړى.
۸۶. د مامورينو دندى په څانگړى اصولنامه كى روښانه او بيل شوى دى هر مامور د وضع شوى اصولنامې د لارښوونې سره سم د ورسپارل شوو دندو مسوول پيژندل كيږى.

محكمې :
۸۷. عدلى محكمې د عمومى شرعى دعوو ځاى دى .
۸۸. په شرعى محاكمو كى وړاندى شوى د عوى د حنفى (رح) مذهب د مقرراتو سره سم فيصله كيږى.
۸۹. ټولى محكمې د هر ډول لاس وهنى څخه آزادى دى .
۹۰. په عدليه محاكمو كى پر ټولو دعوو په ښكاره ډول پريكړه كيږى بيله هغه مسئلو چي د شرع خاوندانو د هغو پريكړه په پټه لازم بللى وى .
۹۱. د محكمو حضور ته هر سړى د خپلو حقونو د خوندى ساتلو د پاره ټولى مشروع وسيلى وړاندى كولاى شى.

**عالي ديوان :**

۹۵. د دولت د وزيرانو د محاكمې لپاره د اړتيا په وخت كې په لنډ مهاله ډول عالي ديوان جوړيږى او د سپارل شوو دندو تر اجرا وروسته باطليږى.

۹۶. د عالي ديوان دجوړيدو شكل اوپه هغه كې د محاكمې اصول د ځانګړى اصولنامې څخه اخستل كيږى.

۹۷. د دولت واردات او كلني لګښت د بودجې د ۴۳ اصل سره سم تنظيمږى.

۹۸. د بودجې تر اجرا او تطبيق وروسته يو قطعي كلني محاسبه جوړيږى چې دا قطعي محاسبه كلني حقيقي لګښتونه او د وارداتو اندازه ټاكي .

۹۹. د بودجې د قطعي محاسبې او د هغې د اجراتو د تنظيم د پاره ځانګړى اصولنامه موجوده ده .

۱۰۰. د ماليانو بخښنه يا تخفيف د ځانګړى اصولنامې له مخې اجرا كيږى .

۱۰۱. د ولايتونو د ادارى اصولو د دريو بنسټيزو قواعد وله مخې د ما دونيت د توضيح دلست ، د دندو جلا والى اود مسئوليت د ټاكلو پر اساسى او په دى برخه كې د وضع شوو قواعدو پر بنسټ تعين او جلا شويدى او د مامورينو واكونه هم د وضع شوو اصولو سره سم ټاكل شويدى او هر مامور په خپلو دندوكې خپل لوړ آمر ته مسوول پيژندل كيږى.

۱۰۲. په ولايتونو كې د وزارت د هرى څانګې جلا جلا مامورين ټاكل شويدى او خلك د خپل كار او ستونزو د حل لپاره اړونده څانګو ته مراجعه كوى.

۱۰۳. كه چيرى د هيواد په يو برخه كې د نافرمانى او بغاوت اثار چې عمومي امنيت ته تاوان رسوى ښكاره شى حكومت د قيام او بغاوت د دفع د پاره لازم تدابير نسى .

۱۰۴. د ښاروالى د دائرو جوړښت او دندى د ځانګړى اصولنامې له مخې ترسره كيږي .

۱۰۵. د عسكرو جلبول د ځانګړي اصولنامې له مخې تر سره كيږى ، عسكرى حقونه.او دندى او مناسب پرمختګ د اصولو سره سم تر سره كيږى.

۱۰۶. د هيڅ يو عسكر حقونه او منصب اخستل كيداى نه شى مګر د اصولو له مخې .

۱۰۷. بهرنى اتباع په عسكرى مسلك كې دداكترى او پوځي معلمي څخه پرته بل ځاى نه منل كيږى.

**متفرقه اصول:**

۱۰۸. د ليكونو مصئونيت د ولس د حقونو څخه يو حق دى د ولس ټول ليكونه او مراسلات چې پوست

د دى اصولنامې د موادو د حکم اجرا او پلي کول يومنل شوي امرګڼل کيږي .

ليکنه د ۱۳۱۰ لمريز دلړم (۸)، د ۱۳۵۰ سپوږميز دجماد الثانى (۱۹)

## د هيواد د اساسى اصولو ضميمه :

۱. د بهرنيو چارو وزارت مامورين او عسکرى منصب دارن او هغه افغانى محصلين چي د دولت په پيسو د زده کړى د پاره د هيواد څخه بهر ليږل کيږى د خارجى تبعه سره د واده کولو اجازه نلرى.
۲. بهرنى اتباع په افغانستان کى د استملاک حق مطلقاً نلرى په افغانستان کى د ميشتو بهرنيو سفارتونو سره د متقابله ترونو له مخى کړنه کيږى .

د وږى ۱۲ نيټه، ۱۳۱۱ کال د ۱۳۵۱ سپوږميز کال جمادى الاول ۱۴ سره سم

### د لمړى شميرى ضميمې د (۲) اصل تعديل

### د هيواد اساسى اصول:

بهرنى اتباع په افغانستان کى د استملاک حق نلرى په افغانستان کى د بهرنيو سفارتونو او قونسلګريو سره د دواړوخواو دمقاولي سره سم متقابلى معاملى کيږى.

د زمرى ۲۴ نيټه ، ۱۳۱۷

### د اساسى اصولو د (۵۱) اصل تعديل :

که يو وزارت او يا خپلواکه اداره د يو اصولنامې وضع کولو ته اړتيا پيدا کړى ، هغه لايحه دى جوړه، د وزيرانو د جرګې تر کره کتنى ، د ملى شورى او اعيانو د مجلسونو تر پريکړى او همايونى ذات تر صحه وروسته د اجرا وړګرځى .

## د اعليحضرت محمد نادرشاه پرانستونکې وينا

### د ۱۳۱۰ کال د وږى اتلسمه ورځ ، د ۱۹۳۹ د جولاى ۹ نېټه

دا د اسلامى شورى مجلس د هغه لوى او واکمن خداى په نامه چې د دنيا او آخرت د نيک بختيو بخښونکى دى پرانيزم ، او د متعال خداى له دربارنه د افغانستان د حکومت او ملت برى غواړم چې حضرت محمد (ص) پاک شريعت تر سيورى لاندى د اسلام دى پاکى خاورى ته غوره خدمتونه وکړى او يو ځل بيا د الله د کلمې په لوړولو او د افغانستان د ترقى او لوړتيا دپاره تل پا تې برياوې ترسره کړي .
زما دوستانو الحمد الله يو ځل بيا افغانستان د بدبختيو، نفاق او کورنيو جکړو د پېښو ځخه خلاص او مامون وينم په بيغمه دهيلو ځخه په ډک زړه د ملى شورى د موسسى په پرانستلو پيل کوم ، ملى شورى معنى تاسوته تشريح او در پيژنيم. الحمد الله مونږ او تاسى ټول مسلمانان يوو، مشوره زمونږ د کار بنسټ دى ، مونږ د قران عظيم شان په حکم ( و شاورهم فى الامر فاذا عزمت فتوکل على الله ) په مشوره کولو مکلف وو او يوو او اوسوبه ، حضرت محمد (ص) د مسئلو په حل کى مشوره فرمايل .
خلفاى راشدين (رض) په مشوره کار کاوه ، د نبى اميه خليفه گانو هم مشوره فرمايل ، ولى عباسى خليفه گانو د خپلو چارو د مخته بيولو د پاره مشوره د خپل کار ټينګ بنسټ وګرځاوه . د ملت استازى به د عباسى خليفه گانو په دربار کى حاضر وه او حکومت ټول کارونه د استازو په مشوره کول. د عباسى خليفه گانو ځخه وروسته د اسلام پاچاهانو مشوره د خپل کار قوت او اقتدار کمزورى گڼله او په دى ډول نى پرمختګ او ترقى ته لړه پاملرنه وکړه ځکه په اسلام کى ډيرى دورې د نابودى ، تغير او بدلون سره مخامخ شوى .

په افغانستان کى د پيړيو را پدى خوا مشوره دوام لرى د افغانانو جرگه د افغانستان يو عادل حاکم بللاى شو ، زمونږ د ملت د پاره مشوره کوم نوى شى نه دى. تيرو باچاهانو که د ملت په مشوره کار نه وى کړى ولى مشوره په قبايلو طائفو که نافذه ده ، د خداى ځخه خير غواړو چې يو ځل بيا هغسى تورى پيښى په افغانستان کى منځ ته را نه شى او دا موسسه ( ملى شورى ) مونږ او تاسو ته موقع ، وخت او پوه را په برخه کړى د شکايتونو ټول علتونه د ملت او حکومت تر منځ رفع کړى ځو ملت خپل حکومت د ملت او هيواد دپاره ګټور او ترقى غوښتونکى وګڼى. د نن ملى شورى د نورو هيوادو د شورى گانو چې د وخت په تيريدو سره نى پرمختګ او اصلاحات تر لاسه کړيدى ممثله ده او زمونږ د تيرو شورى گانو د پرمختګ

کوم وخت چې تاسې د شورې د حقونو قانون ولولې پوه به شې چې د نن ملي شورې د پخوانيو جرګو او شورګانو سره څه توپير لرې. که تاسې د خپلو حقونو څخه په صحيح ډول ګټه واخلئ او ټل د حکومت د کړنو څارنه وکړې او د افغانستان د ملي شورې د اصلاحاتو، د امنيت د راتللو ، پرمختګ او د هيواد د لوړتيا د پاره به بنسټ اوسې. د لوی خدای په هيله کورنۍ جګړې ، بې اتفاقي او مخالفتونه د ټل د پاره د دې هيواد څخه دمنځه ولاړشي . شخصي مسئلې به د اسلامي سلطنت د زوال او د منځه تګ سبب نشي اود ټل د پاره به ا ملت هوسا او آرام پاته شي. د سلطنت تغيير او تبديل به د هيواد د پرمختګ او لوړتيا لامل نشي، د ملک او ملت صادق او ښه حاکمان او نيک واکداران به ټل په افغانستان کې ټاکل کيږي ، ظلم ، نوې پالنې او بدې اخستنې به يو قلم د دې هيواد په قلم رو کې پيدا نشي ، ويلای شم کومه ورځ چې د ملت استازو ( ملي شورې ) خپل حقونه وپيژندل خير او شر ته ئې د ټولګټوپر اساس وړتيا ورکړه د بې اتفاقي ريښې له منځه ولاړې د هغې ورځې څخه به د افغانستان نيکمرغي پيل شي، خدای قادر ، رحيم او کريم دی .

لکه څنګه چې افغانستان په دې لږ وخت کې د کوروړانونکې انقلاب نه وساتي او د افغانستان ملت ته ئې بيا له سره امنيت عزت او توانائي وربخښله د بخښونکي خدای درباره ناهيلي نه يو ، پوره هيله او اميد لرم چې تير انقلاب به زمونږ د ملت د غم او مصيبت وروستنۍ دوره وي .

او انشاالله و تعالی د ټل دپاره به پای ته ورسيږي دا د ملي شورې د پرانستلو ورځ به د افغانستان د نيکمرغي د دورې لمړی ورځ وي چې تر اورستنې پورې به دوام پيدا کړي، د ملت درنو استازو ناهيلي مه اوسئ دا دظلم دورې چې مونږ او تاسو تيرې کړې د نړۍ ولسونو د ژوند تاريخ او ټول هيوادونه ښې چې ترهرې سختۍ وروسته هوساينې راځي ، د هر خوړ نه وروسته لوړ والی او ښه والی راتلونکی دی په دې شرط چې د خدای بنده ګان د حقيقت او انسانيت د لارې څخه وانه وړې عيب ته هنراو د وروسته پاته والي عامل د پرمخ تګ وسيله ونه ګڼې، زما ګرانو ورونو او زامنو غواړم ددې دورې د اجراتو څخه تاسوته د افغانستان د نن ورځې د بهرنۍ سياست په هکله څه ووايم څو تاسې د خپل حکومت د نن ورځې په بهرنی سياست باندې وپوهيږې او پاته مسايل چې په يونيم کال او څو مياشتو کې څه اجرآت شويدی صدراعظم صاحب او وزيران به تاسوته معلومات درکړې غواړم د خپل راتګ د پيل څخه د افغانستان و پاکې خاورې ته تر نن ورځې هغه څه چې د دوستو هيوادو سره مې معامله او مکاتبه کړيده ووايم څو تاسوته زما بهرنۍ سياست پټ پاته نشي .

د بيا نيولو د ارادى آوازئى شا و خوا وګرځيدل د لويديځ خوا خلګ لږ څه شکمن شوى او فکرى کاوه چي زه او ورونه مى د امان الله خان په ملاتړ کار کوو ډير ځله مى ښکاره کړه چي زما مطلب د هيچا شخصيت نه دى او دخپل شخصيت د ثبوت دپاره نه يم راغلى زه غواړم چي په افغانستان کى سوله راشى او کورنى جګړى د منځه لاړى شى او هر څوک چي د افغانستان ټول ملت او قومونه ئى غواړى د پاچاهى دپاره ئى وټاکى هغه شخص دى پاچا شى ولى زما ددى ټوله کوښښونه سره بيا هم د لويديځ خلکو زما پر خبرو شکمن وه باور ئى نه کاوه له دى امله زه ناچار وم چي د خپلى پاچاهى اعلان د ټول ملت د رضايت پرته رد کړم هرڅونه چي د حساسو وختونو ، ناکاميو او ماتى په حالت دا مطلب راته وړاندى شو ما د پاچاهى د نامه په نسبت د واکمن خداى په نامه زياته تکيه کوله او د هغى مرستى نه چي د پاچاهى په نامه زما سره کيدله د لوى خداى لطف او مهربانى ته مى لمړيتوب ورکوله څو چي د لويديځ د وګړو په منځ کى فکرى اختلافونه منځ ته راغلل او سقاويانو په لويديځ کى پوره واکمنى تر لاسه کړ ، ګرديز د خوست ډيرى برخى ارګون او نور ونيول شول ، ما په دى وخت کى وغوښتل چي د آزاد سرحد افاغنه څخه مرسته وغواړم ، غوښتل مى چي د ارکزائى قوم نه مرسته وغواړم پدى وخت کى زما او د ارکزايانو تر منځ لاره د انګريزانو په لاس کى وه د حاجى محمد اکبرخان په واسطه د انګريزى حکومت سره خبرو اترو ته داخل شوم د برتانيې حکومت موافقه ونه کړه بى پلوه بهانه ئى وړاندى کړه ارکزيانو ته د لارى په ورکولو کى مخالفت اعلان کړ او خپله بى پلوي ئى وښودله او په دى نامه د برتانيه د حکومت ليک ماته را ورسيدى چي دا ليک تر اوسه پورى موجود دى ، د دى ټولو سره سره مايوس نه شوم او لاس مى د کاره وانه خيست د ځاځيو غيرت مند قوم او يوه برخه منګل احدزائى زما په لاس کى وه په پاى کى مى پريکړه وکړه چي د دوزيرو قوم څخه چي زما مرستي اوافغانستان آزادى ته ئى ملاتړلى وه افغانى او اسلامى غيرت ئى پر جوش راغلى وو مرسته وغوښت سي ، وزيرو زما بلنه ومنله او حضور ته مى حاضر شول د برتانيا حکومت پردى مسئله باندى زما سره زيات خيرتوب ښکاره کى د حاجى ميرزا محمد اکبرخان سره ئى پردى مسئله ډير تينګار وکى چي بايد وزير د ځاځيو څخه وزيرستان ته ستانه او بيرته ئى وليږو ، او همدارنګه مى خپل ليکونه د قندهار د خلکو قومونو او قبائلو ته د عبدالغنى په لاس د چمن د لارى استولى وه ، زما ټول بلن ليکونه د قندهار او اڅکزيو غيرتمن قوم ته ورسيدل ولى خپله عبدالغنى خان د هند حکومت پرى نه ښود اود هغه د پرمخ تګ لاره ئى و تړله او هغه ئى قندهار ته پرى نه ښود هغه وه چي زما اعلان د اخستلو سره سم د قندهار ولايت قومونو پاڅون وکړ او د خوشحالى عريضي ئى زما د مجاهد

مشرانو سره د کابل او لوګر جګړی ته ولیږل ، لا د برتانیه دولت د وزیرو د بیرته نه لیږلو په د لائلو قانع شوی نه وه چي د کابل د نیولو خبر راورسیدی لنډه داچي د کابل تر نیولو مخ کی زما او د برتانیه د دولت تر منځ د وزیرو د شرکت د مسئلي پرسر ډیر تاو تریخوالي موجود وه زه د تقدیر په حکم مجبوروم چي د افغان د هرقوم او قبلي څخه چي ممکن وی مرسته وغواړم کوښښ می کاوه ، زما او د ژوند تر منځ بیله نفس څخه بل څه باقي پاته نه وه ، د برتانیه د حکومت ګوت خنډنه د وزیرو د ګډون په هکله د سقاو ظلم زما په نظر اهمیت درلود څکه چي زما د ژوند میدان ډیر تنګ شوی و، ما د شرف ژوند یا خپل او د خپلی کورنی مرګ ته هوډ کړی و زه نن د تا سو استازو په حضور کی اعلان کوم چي ما د قادر خدای په مطلق فضل او رحم او دافغانستان د خلکو د سربښدی نه پرته په هیڅ پردی دولت باندی کابل فتح کړی نه دی ، زما بری د هیواد په آزادی کی د لوی خدای په خاص فضل او د افغانستان د ټول ملت په همت اوغیرت سرته رسیدلی دی .

هغه وخت چي زه کابل ته را ورسیدم او تاسو ملت زه په ډیرټینګار او تائید د افغانستان د پاچا په حیث وټاکلم بهرنی وزارت دستي ټوله نړی ته اعلان وکړ او د بهرنی وزارت د اعلان په خواب کی ټولو دوستو هیوادو دا وسنی حکومت په پیژندلو اعتراف او تبریکی ئی اعلان کړل د ترکيې د عالیه دولت سفیر په کابل کی تشریف درلود ، د شوروی د نیک دولت سفیر تر ټولو وړاندی کابل ته راورسیدی ، د وستو هیوادو یو په بل پسی خپل استازی د افغانستان در بارته راولیږل ، ما د نړیوالو اصولو او قاعدو پر بنسټ ټولی هغه معاهدی چي مخکی حکومت ددوستو هیوادو سره لاس لیک کړي وی تصدیق کړی بل هیڅ یوپټ یا ښکاره تړون می نه دي کړی.

زما حکومت تر نن ورځی پوری د کوم امتیاز حق هیڅ دولت ته نه دی ورکړی او ترڅو چي ژوندی یم داسي یو شی به زما په قلم انشاالله لاسلیک نه شي ، زه د افغانستان بهرنی سیاست په برخه کی قطعاً نه غواړم کوم ټینګار ولرم او هم خپل حکومت او ملت ته توصیه کوم چي د افغانستان جغرافیائی موقعیت هیڅ کله دپټو سیاستونو څغم نه لری د پټو سیاستونونه باید تل ډډه وکړو یو ځل بیا غواړم تاسوته ښکاره کړم هغه ګټور سیاست چي په افغانستان کی ئی تصور کیدای شی او زه تل د هغه د دوام سپارښتنه کوم دا دی چي افغانستان باید بی پری وی، د خپلو ګاونډیانو او ټولودو ستو هیوادو سره روښانه او ښه سلوک چي د افغانستان د ګټو خلاف نه ویترسره کړی او خپل ګاونډیان عملاً باوری کړی چي افغانستان د دواړو خواووترمنځ سوله کاملاً ساتي او د خپلو ګاونډیانو سره په برابره توګه دوستانه کړه وړه درلوده او

افغانستان او د افغانستان همدردى د سرحدى قومونو سره د کلونو په اوږدو کى تجربه کړى او ليدلى دى ، مونږ په هيڅ ډول د دى همدردى نه منکريدلاي نشو ځکه چي د سرحدى قومونو انديښنې پر افغانستان باندى حتماً اغيزکوى له دى امله د آزاد سرحد قومونو نيکمرغي او خوښى زمونږ هيله ده .

عزتمندو استازو دا دى ستاسو د حکومت ننى سياست چي درته بيان مى کړ چي تاسو لږ تر لږه د واقعيتونو څخه خبر او په کارونو کى دقيق اوسى، هره مسئله ښه وسنجوى او پريکړه وکړى ، بى پروائى د هيواد په چاروکى لويه ګناه ده، تاسو د يو لوي ملت په برخليک باندى په دى مجلس کى پريکړى کوى چي ستاسو په سهوه او خطا کى به وشميرل شي، تاوان ئى يوعظيم الشانه اسلامى هيواد او ملت ته رسيږى په ډير احتياط او دقيق ډول يومسئلى ته وراندى شي.

ومولیدل چي پخوانيو خپل راتلونکى ونه سنجول او حکومت وخير ته د شر په نسبت برترى ورنکړه څونه غټ تاوانونه ئى منځ ته راوستل، هره ورځ ئى دا ملت د ستونزو سره مخامخ کاوه بيله دى چي ورايو خيانت ئى وکړ نورنو څه ويلاى شو ، دا چي ستاسو حکومت تر ډيره حده شورى ته اهميت ورکوى او غواړى چي تل داسى اجرآت وشي چي د هغه څخه د خداى رضا او دمخلوق خوشحالى تر لاسه او د عمومى روحيي سره سم و مطلوبى لوړتيا ته ورسيږى.

دا دى په ډيره خوشحالى سره مى د ( ملى شورى عالى مجلس ) پرانيستي ، په نظر کى لرم چي په الهى فضل سره د ( ملى شورى ) د فکرى مرستى او نوروعالى مطلبونو د لاس ته راوړلو په منظور د اعيانو يو مجلس هم پدى ځاى کى جوړ کړم.

د ۱۳۴۴ کال د مجلى لمړى ګڼه

## د ۱۳۰۹ کال د عالي لوئی جرگې مصوبه ، د افغانستان د ملی شوری د استازو د ټاکنو اصول

## لمړی څپرکی

**د استازو شمیر:**

۱. د ملی شوری د مجلس دپاره د ملت د استازو شمیر ۱۷۱ تنه دی .

۲. د ملت د استازو ویش د ولایتونو او اعلی حکومتونو د تخمینی نفوس په نسبت د هغه جدول په اساس دی چې ددی اصولنامې په پای کی ورسره مل دی.

## دوهم څپرکی

**د ټاکونکو شرایط :**

**۳. ټاکونکې باید دلاندی شرطونو لرونکې وي :**

الف : د افغانستان تبعه وی.

ب: عمر ئی تر شل کاله کم نه وی.

ج: د انتخابي سیمی اوسیدونکی او یا لږترلږه ترټاکنویوکال مخ کی په هغه ځای کی میشت شوي وی.

**۴. هغه کسان چې د انتخابولو حق نلری :**

الف: هغه کسان چې قانوناً تر وصایت لاندی نه وی.

ب:هغه سوداگرچې د کومی تیروتنی له امله مفلس شوی وی.

ج: جنائی محکومین.

**۵. هغه څوک چې د خپلې دندی له امله د ټاکلو څخه بی برخی دی :**

الف: عسکری منسوبین ، ظابطان او منصب دارن

## دریم څپرکی

**دنوم آندو شرایط:**

**٦.انتخاب کیدونکی یعنی استازی باید لاندی صفات ولری:**

الف : د افغانستان تبعه وی.

ب: هغه پردی کسان چي د افغانستان د تابعیت تذکری ترلاسه کولووروسته لږترلږه باید لس کاله نور په افغانستان کی اوسیدلی وی.

ج: د امکان تر حده لوستی وی.

د : عمر ئی تر ۳۰ کاله لږ او تر ۷۰ کاله ډیر نه وی.

هــ: په صداقت او ریښتینولی مشهور وی .

**۷. هغه کسان چي د استازیتوب د پاره د ټاکل کیدو حق نلری:**

الف: عسکری خلک ،ظابطان ،منصب داران، پولیس او ژاندارم.

ب: که چیری مامورین وغواړی چي د خپل ماموریت په سیمه کی استازی وټاکل شی مخکی له دی چي دټاکل کیدو لپاره کوم ګام واخلی، باید استعفی وکړی او د ماموریت د سیمي نه د باندی هر مامور استازی ټاکل کیدای شی پدی شرط چي تر ټاکل کیدو وروسته د خپل ماموریت نه استعفی ورکړی.

ج: هغه سوداګر چي د تیروتنی له امله مفلس شوی وی.

د : جنائی محکومین.

## څلورم څپرکی

**د ټاکونکو د ډ لی لپاره د حکومت د جار( اعلان) بڼه:**

۸. سیمه ئیز حکومتونه د سیمی د اهمیت په پام کی نیولو سره د لسو ورځو څخه تر یوی میاشتی پوری مخکی جار وهی ، جار باید د لاندی مطلب لرونکی وی:

الف: د ټاکونکو او دنوم آندو شرطونه :

ب: ځای او د هغه وخت چي رای ورکوونکی د استازی د ټاکلو دپاره جرګه او مذاکره کوی .

ج: د هغو استازو شمیر چي باید وټاکل شی.

۱۱. د ټاکنو په سیمه کې چې ټاکونکې د ټاکلو ځای ته حاضرېږي که چیرې د یو شمیر سیمو ټاکونکې په ځرګند وخت د ټاکنو مرکز ته حاضر نشي د هغې سیمې د ټاکونکو حق له مینځه ځي او د نورو ټاکونکو نقطو اعتبار په خپل ځاي دی.

## پنځم څپرکی

**د ټاکنو لارې چارې :**

۱۲. د شورې د مجلس د استازو ټاکل د افغانستان په ټولو نقطو کې به په مستقیم او بلا واسطې ډول وي

۱۳. د یوي انتخابي حوزې ټاکونکې د ټاکنو د ځای په مرکز کې غونډه کوي او د استازې د ټاکلو په هکله جرګه او مذاکره کوي ، د هغې سیمې د خلکو څخه د هغه ځای د حاکم او شرعي محکمې دپلاوي په مخ کې خپل استازی ټاکي او د هغه د ټاکلو په هکله شرعي اقرارلیک لیکي.

۱۴. د استازې ټاکل د ټولوټاکونکو په عمومي خوښه سره کیږي که چیرې عمومي هوکړه نه وي ټاکل د رایو په اکثریت سره تر سره کیږي.

۱۵. که چیرې د استازې په ټاکلوکه عمومي هوکړه او د رایو یووالي د یوي انتخابي حوزې د ټاکونکو تر منځ موجوده نه وي د دوو یا ډیرو استازو ترمنځ د برابرو رایو په صورت کې استازی د پچې پربنسټ ټاکل کیږي.

۱۶. رای ورکوونکې یوازې یوځل د رای ورکولو حق لري مګر په هغه صورت کې چې د ټاکلو بهیر ته د سره اړتیا شي.

۱۷. د ځای د اهمیت په پام کې نیولو سره د استازې د ټاکلو دپاره د ټاکونکو د جرګې وخت د یو څخه تر دوو ورځو پورې کیدای شي، د هغه وخت په ختمیدو سره چې د سیمه ئیزحکومت او شرعي محکمې د پلاوي له خوا د استازو د ټاکلو لپاره ټاکل شوی وي د ټاکنو غونډه پای ته رسیږي.

۱۸. د کوچیانو لویي قبیلې ( قامونه) د دې اصولنامې سره د مل جدول له مخلې یو تن استازی سیخ د شورې جرګې ته د استازې په توګه رالیږي او نورې کوچې قبیلې ( قامونه ) چې نوم ئې په جدول که نه دی راغلې په هره انتخابیه حوزه کې چې اوسي خپله رای به استعمال کړي.

۱۹. د شرعي محکمې لیکونکې ( کاتب) د ټاکنو بهیر په دریو نسخو کې جوړ د شرعي محکمې د پلاوي

## شپږم څپرکى

**د ټاکنو په هکله راغلى شکايتونه :**

۲۱. که چيرى د ټاکونکو او ټاکل کيدونکو له خوا کوم څوک د ټاکنو پرمهال د ټاکلو په هکله کوم نظر يا شکايت ولرى د ټاکنو د بهير د څنډيدو لامل کيداى نشى، خو د هغه شکايتونو شرح بايد د شرعى محکمې له خوا د ټاکنو په دوسيه کى درج شى.

۲۲. د شرعى محکمې پلاوي او سيمه ئيز حکومت د ټاکنو په هکله شکايتونه تر يوى اونى پورى منلاى شى ورروسته له هغه دشکايتونو اوريدل بندوى اود يوى بلى اونى په جريان کى رسيدلى شکايتونه څيړى.

۲۳. د ټاکنو په اړه يا د شرعى محکمې د کارڅخه شکايت کوونکى کولاى شى د شورى د جرګې د پيل څخه ورروسته د لمړى مياشتى په ترڅ کى خپل شکايتونه د شورى مجلس ته وړاندى کړى او د شورى حکم به غوڅ وى.

۲۴. هغه ټاکنى چي د زور او يا کومى بلى هيلي پر بنسټ سرته رسيدلى وى د منلو وړنه دى او سربيره پر دى ګوت څنډونکى او هيله مند کوونکى ته جزا ورکول کيږى.

۲۵. پر ټاکنو هغه څوک نيوکى کولاى شى چي د ټاکنى حق ولرى.

۲۶. کله چي د دريو څخه دوى برخى استازى د حکومت په مرکز کى حاضر شول د شورى غونډه پرانستل کيږى او د اکثريت د رايو پربنسټ د اعتبار او اجرا وړ دى.

۲۷. د استازى توب دوره درى کاله ده او پيل ئى د شورى د مجلس د پرانستلو دورځى څخه ده .

۲۸. که چيرى د شورى يو غړى وفات يا استعفى وکړى او د استازيتوب د دورې څخه ئى تر شپږومياشتو زياته موده پاته وى د سيمى خلګ د شورى د رياست د اعلان پر بنسټ يو بل استازى تر ټاکلو ورروسته راليږى.

۲۹. د هرى دورې تر ختميدو درى مياشتى وړاندى د بلى دورې د استازو د ټاکلو دپاره دولت اعلان کوى او خلک کولاى شى که وغواړى خپل پخوانى استازى د بيا د پاره وټاکى.

**د کابل ولایت د استازو شمیر چې د ملي شورى جرګې ته ټاکل کیږي ۳۸ کسه وو**

| | |
|---|---|
| ۱. د کابل د ښار د خلکو | ۱ تن |
| ۲. د چهاردهي د حکومتي د خلکو | ۲ تنه |
| ۳. د ده سبز د خلکو | ۱ تن |
| ۴. د بګرامیو د خلکو | ۱ تن |
| ۵. د پغمان د خلکو | ۱ تن |
| ٦. د شمالي د لوی حکومتی مرکز د خلکو | ۱ تن |
| ۷. د کوهدامن د خلکو | ۱ تن |
| ۸. د غوربند د خلکو | ۱ تن |
| ۹. د بګرام د حکومتي د خلکو | ۱ تن |
| ۱۰. د جبل السراج د خلکو | ۱ تن |
| ۱۱. د سرخ پارسا د خلکو | ۱ تن |
| ۱۲. د بامیان د خلکو | ۱ تن |
| ۱۳. د سیغان د خلکو | ۱ تن |
| ۱۴. د پروان تګاب د لوی حکومت د مرکز د خلکو | ۱ تن |
| ۱۵. د کوهستان د خلکو | ۱ تن |
| ۱٦. د پنجشیر د خلکو | ۱ تن |
| ۱۷. د نجراب د خلکو | ۱ تن |
| ۱۸. د سروبی د خلکو | ۱ تن |
| ۱۹. د غزنی دکیلان د خلکو | ۱ تن |
| ۲۰. د کتواز د خلکو | ۱ تن |
| ۲۱. د اندړو د خلکو | ۱ تن |
| ۲۲. د مـــقر د خلکو | ۱ تن |
| ۲۳. د شرنی د خلکو | ۱ تن |

۲۹. د بهسودو د خلکو ۱ تن

۳۰. د دایکندی د حکومتی د مرکز د خلکو ۱ تن

۳۱. د یکاولنګ د خلکو ۱ تن

۳۲. د لعل او سرجنګل د خلکو ۱ تن

۳۳. د شهرستان د خلکو ۱ تن

۳۴. دلهوګر د کلان د خلکو ۱ تن

۳۵. د میدان د خلکو ۱ تن

۳٦. د کلنګار د خلکو ۱ تن

۳۷. د وردګو د خلکو ۱ تن

## د ملی شورى دپاره د قندهار ولایت داستازو شمیر ۲۴ تنه

۱. د قندهار د ښار د خلکو ۱ تن

۲. د دند حکومتي د خلکو ۱ تن

۳. د سپین بولدک د خلکو ۱ تن

۴. د دهراود د خلکو ۱ تن

۵. د ارغستان د خلکو ۱ تن

٦. د نهرسراج د خلکو ۱ تن

۷. د ترین د خلکو ۱ تن

۸. د خاکریز د خلکو ۱ تن

۹. د ارغنداب د خلکو ۱ تن

۱۰. د پنجوائی د خلکو ۱ تن

۱۱. د کشک نخود د خلکو ۱ تن

۱۲. د دهلي د خلکو ۱ تن

۱۳. د شورا بک د خلکو ۱ تن

۱۹. د ګیزاب د خلکو ۱ تن

۲۰. د اجرستان د خلکو ۱ تن

۲۱. د دایه چوپان د خلکو ۱ تن

۲۲. د شنکی د خلکو ۱ تن

۲۳. د لوی قلات د خلکو ۱ تن

۲۴. د ترنک او جلدک د خلکو ۱ تن

## د ملي شورى دپاره د هرات ولایت د استازو شمیر ۲۳ تنه

۱. د هرات د ښار د خلکو ۱ تن

۲. د بادغیساتو د قلعه نو د خلکو ۱ تن

۳. د مرغاب د خلکو ۱ تن

۴. د ګلران د خلکو ۱ تن

۵. د کشک د خلکو ۱ تن

۶. د قادس د خلکو ۱ تن

۷. د جوند د خلکو ۱ تن

۸. د غور د خلکو ۱ تن

۹. د شهرک د خلکو ۱ تن

۱۰. د چغچران د خلکو ۱ تن

۱۱. د تولک د خلکو ۱ تن

۱۲. د پرچمن د خلکو ۱ تن

۱۳. د پاېند د خلکو ۱ تن

۱۴. د غوریان د خلکو ۱ تن

۱۵. د شینډنډ د حکومتی خلکو ۱ تن

۱۶. د زنده جان د خلکو ۱ تن

۱۷. د کوهستان د خلکو ۱ تن

۱۸. د ادرسکن د خلکو ۱ تن

۲۳. د کرخ د خلکو ۱ تن

**د ملي شورى دپاره د مزارشریف ولایت د استازو شمیر ۱۴ تنه**

۱. د مزارشریف د ښار د خلکو ۱ تن
۲. د نهر شاهي د خلکو ۱ تن
۳. د لوي شبرغان د خلکو ۱ تن
۴. د سنگچارک د خلکو ۱ تن
۵. د اقچې د خلکو ۱ تن
٦. د سرپل د خلکو ۱ تن
۷. د قرقین د خلکو ۱ تن
۸. د لوي بلخ د خلکو ۱ تن
۹. د دولت آباد د خلکو ۱ تن
۱۰. د کشنده د خلکو ۱ تن
۱۱. د شورتیپې د خلکو ۱ تن
۱۲. د لوي سمنگان د خلکو ۱ تن
۱۳. د خلم د خلکو ۱ تن
۱۴. د صوف د دری د خلکو ۱ تن

**د ملي شورى دپاره د قطغن بغلان ولایت د استازو شمیر ۱٦ تنه**

۱. د بغلان د حکومتی دخلکو ۱ تن
۲. د پلخمری غوری د خلکو ۱ تن
۳. د دوشی د خلکو ۱ تن
۴. د نهرین د خلکو ۱ تن
۵. د اندراب د خلکو ۱ تن
٦. د لوي قندوز د خلکو ۱ تن
۷. د حضرت امام صاحب د خلکو ۱ تن

۱۲. د چاه آب د خلکو ۱ تن

۱۳. د ینگی قلعه د خلکو ۱ تن

۱۴. د خوست او فرنگ د خلکو ۱ تن

۱۵. د چال اواشکمش د خلکو ۱ تن

۱٦. د فرخار د خلکو ۱ تن

**د ملی شوری دپاره د شرقی ولایت د استازو شمیر ۲۱ تنه**

۱. د جلال آباد د ښار دخلکو ۱ تن

۲. د خوگیانیو د حکومتی دخلکو ۱ تن

۳. د سرخرود د خلکو ۱ تن

۴. د کامی د خلکو ۱ تن

۵. د لوي کنړ د خلکو ۱ تن

٦. د کنړ د مرکز د خلکو ۱ تن

۷. د برکنړ د خلکو ۱ تن

۸. د څوکی د خلکو ۱ تن

۹. د پیچ دری د خلکو ۱ تن

۱۰. د کامدیش د خلکو ۱ تن

۱۱. د سرکانو د خلکو ۱ تن

۱۲. د وایگل د خلکو ۱ تن

۱۳. د غلجایو د خلکو ۱ تن

۱۴. د لغمان د خلکو ۱ تن

۱۵. د نورستان د خلکو ۱ تن

۱٦. د قرغه ئی د خلکو ۱ تن

۱۷. د کوز کنړ د خلکو ۱ تن

۱۸. د لوی شینوارو د خلکو ۱ تن

### د ملی شوری دپاره د جنوبی ولایت د استازو شمیر ۱۳ تنه

| | |
|---|---|
| ۱. د ګردیز د ښار د خلکو | ۱ تن |
| ۲. د ارګون حکومتی د خلکو | ۱ تن |
| ۳. د ځاځیو د خلکو | ۱ تن |
| ۴. د څمکنیو د خلکو | ۱ تن |
| ۵. د ځدرانو د خلکو | ۱ تن |
| ٦. د زرمتو د خلکو | ۱ تن |
| ۷. د ازری د خلکو | ۱ تن |
| ۸. د سید کرم د خلکو | ۱ تن |
| ۹. د خوست د خلکو | ۱ تن |
| ۱۰. د موسی خیل منګلو د خلکو | ۱ تن |
| ۱۱. د خوست د ټنیو د خلکو | ۱ تن |
| ۱۲. د ځاځی میدان د خلکو | ۱ تن |
| ۱۳. د جانی خیلو د خلکو | ۱ تن |

### د ملی شوری دپاره د بدخشان د اعلی حکومتي د استازو شمیر ٦ تنه

| | |
|---|---|
| ۱. د بدخشان دمرکز د خلکو | ۱ تن |
| ۲. د درواز د خلکو | ۱ تن |
| ۳. د جرم د خلکو | ۱ تن |
| ۴. د کشم د خلکو | ۱ تن |
| ۵. د واخان د خلکو | ۱ تن |
| ٦. د اشکاشم د خلکو | ۱ تن |

### د ملی شوری دپاره د فراه اعلی حکومتي د استازو شمیر ۴ تنه

**د ملي شورى دپاره د ميمنى اعلى حكومتي د استازو شمير ٦ تنه**

١. د ميمنى د مركز د خلكو ١ تن
٢. د اندخوى د حكومتي د خلكو ١ تن
٣. د پشتون زرغون د خلكو ١ تن
٤. د گرزيوان او درزاب دحكومتي دخلكو ١ تن
٥. د تاب شرين دخلكو ١ تن
٦. د قيصار د خلكو ١ تن

**د ملي شورى دپاره د كوچيانود لويو قبيلو د استازو شمير ٦ تنه**

١. د غزنى د كوچيو خلكو ١ تن
٢. د كتواز د كوچيو خلكو ١ تن
٣. د قلات د كوچيو خلكو ١ تن
٤. د پشت رود د كوچيو خلكو ١ تن
٥. د گرمسيرريگستان بلوچ د كوچيو خلكو ١ تن
٦. د ننگهارى كوچيو خلكو ١ تن

## د ملي شورى دداخلي د ندو اصول د ۱۳۱۰ کال د لړم د مياشتي پريکړه

**د رئيس، مرستيالانو او منشي ټاکل او د هغوى د ندى:**

**اصل:**

۱. رئيس او مرستيالان ئى د استازو د ډلي نه د رايو په اکثريت سره ټاکل کيږى د ملي شورى په لمړى غونډه کى چي د استازو د ځلور ځخه درى برخي حاضره وى رئيس بايد وټاکل شى.

۲. د شورى منشي د مجلس په انتخاب او د رئيس په منظورى او پاته د تحرير پلاوي د منشي او شورى د مرستيالانو په پريکړه د رئيس په وړاندى ټاکل کيږي . د خانه سامان ، تحويلدار او نورو چوپړيانو ټاکل سيخ د رئيس واک دى .

**د رئيس دندى:**

۳. د مذاکرو پيل او دجرګې پاى ته رسول د رئيس واک دى او همدارنګه د نوبتي يافوق العاده غونډو وختونه د رئيس له خوا ټاکل کيږى.

۴. پر يو موضوع باندى تر کافي خبرو وروسته رئيس د راى اخستنى امر کوى او پايله مجلس ته اعلانوى

۵. رئيس د ټل د پاره د غونډو او مذاکرو څارنه کوى که چيرى د مذاکرى په وخت کى د کوم يوه ځخه د موضوع نه بهر کومى خبرى کيږى رئيس د مذاکرى ډول هغه ته وربنيي .

۶. که چيرى د مذاکرى په وخت کى دغړو تر منځ کومه مشاجره منځ ته راځي او د مشاجرى د حل د پاره د مذاکراتو ځنډول اړين وي، رئيس مجلس ځنډولاى شى.

۷. هغه مطلب چي مجلس ته رسيدلى او د مذاکرى وړوى رئيس کولاى شى د هغه مذاکره يو بل ځرګند وخت ته وځنډوى او دا ډول مسائل د منشي له خوا ځخه د هغى ورځى د کارونوپه لړليک کي قيديږى چي په هغه ټاکلي ورځ تر بحث لاندى ونيول شى.

۸. د پلټنى ټولګى ( انجمن) چي د مجلس دغړو ځخه جوړيږى د اړتيا په وخت کى رئيس د هغوى په مذاکراتو کى ګډون کولاي شى.

۹. د جرګې رئيس که وغواړى چي د يو مطلب په بحث کى ګډون وکړى او پرهغه باندى مذاکره کول اړين وګنى بايد خپل ځاى لمړى مرستيال ته پريږدى او خپله د وينا کونکي پرځاى ودريږى.

**د مرستيالانو دندى:**

۱۱. كله چې د جرګې رئيس حاضر وى مرستيالان د هغه سره مرسته كوى او د رئيس د غيابت پر مهال لمړى مرستيال او كه چيرى لمړى مرستيال نه وى دوهم مرستيال د رئيس د ټولو دندو په اجرا كولو مكلف دى.

**د منشي دندى:**

۱۲. منشى د غونډو د بهير چارى په لاندى ډول مخ ته بيائى او اجراات كوى:

الف : د مجلس د پيل څخه مخكى د مجلس د كارونو لړليک جوړ او د مجلس په پيل كى ئى رئيس ته وړاندى كوى.

ب: په دى لړليک كى د كار د درجى او اهميت په پام كى نيولو سره د لايحونومونه، ځانګړتياوى او د هغوى نيټه ليكى.

ج: د جرګې په جريان كى د حاضرينوشميردځانګړى جدول سره تطبيق او د سوب او ناسوب شميرڅرګند او د رئيس حضور ته ئى وړاندى كوى.

د: هره ورځ د جرګې د پيل په وخت كى د اصولو هغه مطالب چې په تيره غونډه كى ورباندى بحث شوى ولى مذاكره ئى پاى ته نه وى رسيدلى د جرګې د خبرتيا لپاره ئى لولى.

هـ : د جرګې مصوبى او پريكړى ليكى او د رئيس لاسليک اخلى او همدارنګه يو نقل ئى د چاپ اوخپريدو لپاره د جريدو اداروته د رئيس په اجازه سپارى.د لنډ ليكونكوپرليكنو غوراوكتنه كوى.

و: د لايحو او ليكونو لوستل په غونډه كى د منشى دنده ده .

ز: منشى د لايحو په بيا لوستلواوتكرارترهغه وخته چې غړى ئى لوستل كافى وبولى مكلف دى.

ح: په مجلس كه د رايو د اكثريت څرګندول او رئيس ته ئى وړاندى كول د منشى په غاړه دى.

ط: د مجلس هغه پوښتنى او ځوابونه چې استول يې د ليک په څير و رسمى دائرو ته اړين وى د هغه نقل منشى ليكى او د رئيس په لاسليک د اړونده پاڼو سره ئى يوځاى دفترته سپارى څو چې اصل ليک ئى اړونده مرجع ته واستول شى.

۱۳.د جرګې هغه غړى چې د پلټنى د انجمن (ټولګى) لپاره ګمارل كيږى بايد د هغوى نومونه ، د ټاكنى نيټه او ځانګړى دندى ئى د ملى شورى په دفتر كى قيد او ثبت وى.

۱۴. منشى هغه مهمى مسئلى چې د خپل كار په بهير كى ئى ترلاسه كوى او رسوا كول ئى اړين نه وى په

۱۵. هغه مطالب چي د ملي شورى په يو دوره كي نيمګړى پاتي وى منشى مكلف دى چي د هغوى لړليک دراتلونى دورې په لمړى غونډه كي رئيس ته وړاندى كړى څو د دى لايحې د ۲۶ اصل سره سم د مذاكرى دپاره طرح شي.

**د غړو دندى :**

۱۶. د غونډو د غړو څخه كه چيرى څوک د عمومي مصلحت او ګټي دپاره څه ويل غواړى بايد مطالب په لايحه كه وليكى د جرګې رئيس ته ئى وړاندى كړى كه چيرى د هغه هوكړه وى د ملي شورى د اساسي اصولو د ۳۱ اصل سره سم به د مذاكرى دپاره مطرح شي.

۱۷. هغه مطلب چي د پورته ۱۶ اصل له مخى د مجلس د مذاكرى دپاره د منلو وړ وګرځى غونډه اختيار لرى چي په هغه ساعت پر هغه موضوع مذاكره وكړى او يائى بل وخت ته وځنډوى.

**د مجلس د ادابو اصول او د مذاكرو څرنګوالي:**

۱۸. د جرګې غړى بايد ټول په يو ځانګړى ادب سره د يوبل درناوى وكړى داسي كارونه ونه كړى چي د مجلس د آدابو د اصولو خلاف او يا د بل د حقونه و او احترام د منځه وړلو لامل شي.

۱۹. **الف:** د لايحو او يا نورو مسئلو د لوستلو تر پايه پورى هيڅ يو غړى د اعتراض، نيوكى او شفاهي پوښتني حق نلرى ، هغه ټكى چي د اعتراض ، نيوكى يا پوښتني وړ وى هريو غړى بايد پر هغه كاغذ باندى چي د يادداښت دپاره ئى پرميز پروت دى وليكى اود لايحې تر لوستلو وروسته د خپلو يادداښتونو په هكله مذاكره كولاى شي.

ب: د مجلس غړى دملي شورى د اساسي اصولو د ۱۲ او ۳۰ اصلونو له مخي د خپلى راى په ښكاره كولو كي ازاد دى او كله چي دوه غړى يو په بل پسى پر يوه موضوع باندى د خبرو كولو هيله وكړى لمړى كس لمړى د خبرو كولو حق لرى.

۲۰. د مجلس غړى د مذاكرى په وخت كي د موضوع څخه د باندى خبرى كولاى نشى د مذاكرو په وخت كي بايد رئيس د خبرو مخاطب وى .

۲۱.پداسي حال كي چي يو غړى خبرى كوى او نور غړى هغه ته پام ونه ساتي د رئيس په اجازه خبرى سره تكرارولاى شي.

۲۲. كه چيرى يو مطلب په مجلس كي تر مذاكرى لاندى وى د هغه تر خلاصيدو مخ كي نبايد د غړو له خوا څخه بل مطلب پيل شي مګر په هغه صورت كي چي دوهم مطلب د لمړى مطلب سريزه يا د هغه

۲۳. هغه مطلب چې مذاکرې ئې په مجلس کې پای ته رسیدلې وی د رای اخستلو مخ کې د مجلس د خبریدو د پاره بیا لوستل کیږی.

۲۴. هغه مطلب چې پوهیدل ئې د بل مطلب په پوهیدلو پورې اړه ولرې لمړې باید پر موقوف علیه مطلب مذاکره وشي او وروسته په لمړی مطلب باندی پیل وشی .

۲۵. هغه مطلب چې پیچلی او یا بیلا بیلی موضوع ګانې ولرې مجلس اختیارلری چې خپله مسائل پاک کوی او مذاکره وربانده کوی او یا د موضوع د جلا والی او پاکوالی د پاره دمجلس د غړو څخه بیل انجمن جوړوي.

۲۶. که چیرې یوی دورې ته راغلي مسائل د دورې تر پاي پورې نیمګړې پاته شی په راتلونکي دوره کې هم هغه مسائل تر بحث او مذاکرې لاندی نیول کیږی.

**پر مطالبو د بحث او مذاکرې اصول:**

۲۷. مذاکرې هغه وخت پیل کیږی چې لږ تر لږه نیمائی غړی حاضر وی ولی د رایو د اخستلو په وخت کی د ټولو غړو حضور حتمی دی که چیرې دځینو عذرونو له کبله لکه ناروغی او نورو دټولو استازو حضور امکان ونه لری لږ تر لږه د غړو دري برخي باید حضور ولرې.

۲۸. د رای اخستلو په وخت کې که چیرې د غړو د ډلي څخه ځینی چې شمیر ئې د مجلس د غړوتر څلورمې برخی زیات نه وی حضور ونه لری د مجلس د رایود ردولو حق نلری .

۲۹. پر یو موضوع باندی تر کافي بحث او مذاکرې وروسته د رئیس له خوا د رای اخستلو امر ورکول کیږی.

**د رایو اکثریت د لاسته راوړلو بڼه :**

۳۰. د مذاکرو تر ختمیدو وروسته د پورتنی ۳۹ اصل سره سم د رایو په اخستلو پیل کیږی هر یو غړی خپله رایه د شنو او سپینو پاڼو چې سپینه د منلو او شنه د نه منلونښه ده ښکاره کوی چې دا ټولی پاڼی د مجلس په مخ کی د منشی له خوا شمیرل کیږی چې پدی ډول اکثریت څرګندیږی او د رئیس له خوا د شمیرنو پایله مجلس ته اعلانیږی. رئیس او مرستیالان وروسته د مجلس د غړو د رایو تر اخستلو خپله رایه به په پورته شان ښکاره کوی د برابرو رایو په صورت کی د رئیس رایه چې هر لور ته وه هغه خوا برترې لرې.

**د پلټنو د انجمنونو د جوړښت او هغوى ته د مطلبونو د سپارلو اصول:**

۳۱. د پلټنې انجمن عبارت د هغه پلاوي څخه دى چي د غړو د منځ څخه وشورى ته د راغلو مسئلو د لمړنى ارزوني د پاره د ملي شورى د اساسي اصولو د ۳۲ اصل له مخى د مجلس په غوره کولو سره ټاکل کيږى او دهغه تشکيل د اړتيا له مخى کيدلاى شي لنډ مهاله يا اوږد مهاله وي او د هر انجمن د غړو شمير لږ تر لږه لس تنه وى.

۳۲. د پلټنې د انجمنونو تشکيل د مجلس د رئيس په تصويب او د انجمنونو نومونه او شمير ئې د مجلس له لوري انتخاب او ټاکل کيږى.

۳۳. د پلټنې د انجمن لپاره يو تن منشي او يو تن کاتب د انجمن د غړو له منځه د انجمن د رئيس په خوښه ټاکل کيږى.

۳۴. راغلى مطالب پا ک او سوچه کوى او پر هغوى باندى په ډير غور خبرى کوى د پلټنو پايلى د لايحې او خپلو نظريو سره يو ځاى جوړاومجلس ته وړاندى کول ئې درئيس له خوا د ټاکلى وخت سره سم دانجمن د غړو کار دى .

۳۵. د پلټنې پايلى چي د څيړنى د انجمن له خوا ترتيب کيږى په لنډ او مفصل ډول سره مجلس ته لوستل کيږى ، وروسته له هغه اړونده پانى د مجلس رئيس ته وړاندى کيږى که چيرى د دوهم ځل لپاره د هغه تشريح ته اړتيا پيدا شي د دوهم ځل لپاره به ولوستل شي ، که چيرى د انجمن راى د مجلس له خوا د منلو وړ ونه ګرځى په دي هکله استيناف او يا دبل انجمن د جوړيدو امر ورکول کيږى.

۳۶. هغه مسئلي چي د مجلس د غړو له خوا انجمن ته وړاندى شوى او تر مذاکرى لاندى نيول شوى وى نومورى غړى په لنډ ډول دپوښتنو د حل دپاره انجمن ته نوتلى شي .

۳۷. د څيړنى انجمن د هغى ځانګړى لايحي له مخى چي د مجلس له خوا تصويبيږى خپله دنده ترسره کوى د داخلى نظم د اصولو پر بنسټ د څيړنى انجمن د شورى د داخلى دندو د حکم تابع دى.

۳۸. که چيرى د څيړنى د انجمن غړى د مجلس د لايحې سره سم چلند و نه کړى د هغوى کړنه د اعتبارد درجى څخه لويږى.

**د وزارتونو او خپلواکه ادارو څخه د معلوماتو د غوښتلو اصول:**

۳۹. کومې پوښتنې چي مجلس ئې د وزيرانو څخه په ليکلي ډول لازم وګنې بايد منشي هغه وليکى او د

**د اوریدونکو د ستونزو په هکله:**

۴۰. که د ولس ځخه کوم څوک د غونډو د بربنډو مذاکرو د اوریدو هیله ولری د ملی شوری د اجازی ټکټ په درلودلو سره کولای شی په هغه ځای کی چي د اوریدونکو دپاره ټاکل شویدی کښینی خو په هیڅ صورت په مذاکرو کی د ونډی اخستلو حق نلری.

۴۱. اوریدونکی د شوری مجلس ته په ننوتو سره د مجلس د انتظامی چارو د حکمونو تابع دی ، باید په مطلقی ارامی سره اوریدونکی وی که چیری سر غړونه وکړی د رئیس په امردمجلس ځخه ایستل کیدای شی.

**متفرقه اصول:**

۴۲. دملی شوری د رخصتی وخت د تلي د پای ځخه د غوائی میاشتی تر لمړی نیټی پوری او د بوختیا وخت ئی په پاته شپږ میاشتو کی په هره اونی دری ورځی ده خو رئیسان او د ځیړنی د انجمن غړی په اونی کی پنځه ورځی د بوختیا په وخت کي دندی ترسره کوی.

۴۳. د استازو د ټاکلو په اړه شکایتونه د ملی شوری د انتخاباتو دلایحې د ۲۳ اصل په نظرکی نیولو سره د یوی میاشتی په اوږدوکي د شوری په مجلس کی اوریدل کیږی او دمجلس پریکړه به غوځوونکی وی ، د دی وخت په تیریدو سره د چا شکایت د اوریدو وړ نه دی. هغه غړی چي د پورته تصریحاتو په وجه د مجلس له خوا ئی په لیری کولو پریکړه وشی د مجلس د حکم تر صادریدو او د شوری مجلس ته د نورو غړو تر ټاکل کیدو او را تلو پوری د مجلس غړی حساب او د رای حق لری.

۴۴. په مجلس کی د سګرټو او دهغوی په شان د نورو ځیزونو ځکول منع دی.

۴۵. د شوری مجلس د دی لایحې هره ماده د اړتیا په صورت کی او د وخت د غوښتنی سره سم که بدلول ئی اړین وبولی کولای شی د نوروقوانینو په وضع کولوسره په هغه کی بدلون را ولی او یا نوی ځیرکی وضع کړی.

د پورته ذکر شوو موادو د حکمونو د اجرا امر او غوښته کوم

لیکنه د ۱۳۱۰ لمریز د لړم ۸ نیټه ،د ۱۳۵۰ سپوږمیز کال دجمادی الثانی ۱۹ سره سم

# د ملي شورى لمړى دوره

د ملي شورى دلمړى دورې په پيل کى چي د ۱۳۱۰ کال د وږى مياشتي په ۱۸ نيټه ئى په کار پيل وکړ د استازو د ابتدائى توب له کبله د پارلمانى ادارى نوى سيستم د عمومي غونډو د پاي ته رسيدلو، د حکومت سره اړيکى د حکومت استازو د وړانديزونو او پاڼو لوستل — د مجلس د پيل او ختم لړليک او په ځانګړى توګه د ادارى هيئت او د جرګې د رئيس په وړاندى ستونزى او خنډونه وه خو مجلس بريالى شو چي په لمړى ګام کى د داخلى دندو د اصولو پر بنسټ چي د ۱۳۰۱ کال د لړم د مياشتي پر ۸ نيټه تدوين شوه او په هغه کى د ادارى هيئت او استازو دندى ځانګړى شوى وى خپلى داخلى چارى تر يو حده تنظيم او جوړى کړى.

د ملي شورى د لمړى دورې رئيس خداى بخښلى ع . ج . عبدالاحد خان د کابل ولايت د مرکز استازى وؤ دا دوره په اصل کى د پارلمان يوه ابتدائى او امتحانى دوره وه يعنى د خلکو په سياسى او ټولنيزژوند کى د يوى مقننه قوى بنسټ کيښود ، د هغه خنډونو سره سره چي د هغى په وړاندى پراته وو يو سلسله مهم کارونه د ملي شورى او اعيانو په لمړى دوره کى سرته رسيدلى دى چي د هغوى لړليک د دى مجموعى په پاڼو کى شته چي ښاغلى لوستونکى به ئى وويني .

په دى دوره کى مجلس و کولاى شول چي د وخت داړتيا سره سم ډول ډول کميسيونونه جوړ او په اجندا کى پر شاملو موضوعاتو د چاپريال او د وخت د شرايطو د امکان په صورت کى مهمى پريکړى او فيصلى وکړى. د دى دورې د استازو شمير د ادارى هيئت په ګډون (۱۱۱) تنه، د کار دوره درى کاله او دمجلس مقرد شاهى ارګ سلام خانه وه د دى دورې استازى د اساسى تشکيلاتو د قانون له مخى د هر ولايت ، نائب الحکومه ګي ، اعلى حکومتي ، لوي حکومت — لمړى — دوهم — دريم او څلورم درجه حکومتى، لمړى درجه علاقه داريو څخه يو يو استازى ، دنورو وړو سيمو د خلکو له خوا د ټاکنو پر بنسټ د قوم پوه او پيژندل شوى کسان ټاکل کيږى او د ملي شورى مجلس ته د شموليت لپاره په مرکز کى جرګې کوى.

همدارنګه د دى په څنګ کى يو شمير پوه او رسيدلى خلک چي په خپله سيمه او ماحول کى د پوهو ، عالمو او بانفوذه سړو په نامه پيژندل کيدل د مشورتى استازو په توګه د دارالحکومتيو ، اعلى حکومتيو ، لويو حکومتيو په ادارى جرګو کى ګډون کولو او د اړتيا په وخت کى د پيچلو مسئلو او قضيو دپاره

## اصولنامې او د هغو ضميمې

### كومې لايحې چې په لمړى دوره كې جوړى او تصويب شويدى

د ملي شورى د لمړى دورې ادارى هيئت او استازى تر ټولو لمړى په دى بريالى شول چې د مجلس د نظم او داخلي چارو د دندو لايحې جوړى او تصويب كړى چې د هغه له مخى د مجلس اساسى كارونه تر لاس لاندى ونيول شي . وروسته تر هغه مجلس د كميسيونونو د غړو په ټاكلو پيل وكړ ، د حكومت پريو لړ وړانديزونو ئى غور ، حكومتى ادارو او وزارتونو ته ئى لاندى لارښوونى وكړى او په ضمن كى ئى د يو لړ مهمو او اړينو اصولنامو او لايحو په جوړولو يى پيل وكړ، يو څه موضوعات په معاشونو، امتيازونو د شورى د كار او رخصتيو پورى اړوند او همدارنگه يو لړ نور كارونه چې لازم او اړين وو اجرا شول .

هغه اصولنامې چې پدى دوره كى تصويب شوى دى :

١. دبرخه والودتجربودډيربنت (تقاوى تجاربه) اصولنامه .
٢. د څارويو د محصول اصولنامه .
٣. د گاډى او موټر چلولو د چارو اصولنامه .
٤. د مالگې د كان د اجرأاتو اصولنامه.

كومې ضميمې چې د جارى اصولنامو سره زياتى شوى:

١. د مامورينو د رخصتيو او حاضرى د اصولنامې ضميمه.
٢. د مسكوكاتو د نه واردولو په هكله د اساسى اصولنامې ضميمه .
٣. بهرنيو اتباعو ته د استملاک حق نه وركولو د اساسى اصولنامې ضميمه .
٤. په بهر كى د بهرنيو او حربى چارو د مامورينو او افغانى محصلينو د واده نه كولو په هكله د اساسى اصولنامې ضميمه.

د دولتى دائرو دندى او تشكيلاتى هغه لايحې چې جوړې شوى دى:

١. دحربيه وزارت دندى او د تشكيلاتو لايحه .
٢. د بهرنيو چارو وزارت دندى اود تشكيلاتو لايحه.
٣. د كورنيو چارو وزارت دندى او د تشكيلاتو لايحه.
٤. د عدليه وزارت دندى او د تشكيلاتو لايحه.

۹. د ولایتونو دندی او د تشکیلاتو لایحه.

۱۰. د پست د خپلواک مدیریت دندی او د تشکیلاتو لایحه.

۱۱. د تادیې د ریاست دندی او د تشکیلاتو لایحه.

## د ۱۳۱۱ل. کال د کلنی ځخه

۱. د افغانستان اساسی اصولنامه د لړم۸ ،۱۳۱۰ ل (۱۳۵۰سپوږمیزد جمادالثانی۱۹)دتعدیل دضمیمو سره.

۲. د مامورینو درخصتی اوحاضري اصولنامه د ورى ۸ ،۱۳۲۷ ل (۱۳۶۸س جمادالاول۲۸)دتعدیل دضمیمو سره

۳. په افغنستان کی د چلندوړنوټونو اصولنامه د ورى ۱۳ ،۱۳۲۲ ل (۱۳۶۳س صفری ۷)دتعدیل دضمیمو سره.

۴. د بهرنیواتباعودسفر او اوسیدلو اصولنامه د ۱۳۱۸ ل – د تلي ۵ ، د تعدیل د ضمیمو سره.

۵– د ښاروالی د محصولاتو اصولنامه د ۱۳۱۸ ل – د لیندی ۱۰، د تعدیل د ضمیمو سره.

۶–د پاسپورت اصولنامه د ۱۳۱۸ ل – د تلي ۱۰، د تعدیل د ضمیمو سره.

۷– د عسکری مکلفیت اصولنامه د۱۳۳۳ ل د تلي ۱۲(۱۳۷۴ س دربیع الثانی ۸) دتعدیل د ضمیمو سره.

۸– د سوداګری د فترونو اصولنامه ۱۳۲۱ ل د لیندی۱۲(۱۳۶۱ س د جماد الثانی ۱۴) دتعدیل د ضمیمو سره.

۹–پر عایداتو باندي د مالیاتو اصولنامه ۱۳۲۴ ل کب ۱۵(۱۳۶۵ س د ربیع الثانی ۲) دتعدیل د ضمیمو سره.

۱۰–د ملکی مامورینو اومتقاعدینو اصولنامه ۱۳۳۳ ل مرغومی۱۷(۱۳۶۱ س دجمادالاول۱۳) دتعدیل د ضمیمو سره.

۱۱–د محکمې اصول اومحکمودتشکیل اصولنامه ۱۳۲۵ل دغبرګولی۷(۱۳۶۱ س دجماد الثانی ۲۶)دتعدیل ادضمیمو سره.

<u>ملکی مامورین :</u>

۱۲– د بهرنیو اتباعو د ګمارلو اصولنامه ۱۳۱۴ ل دکب۱۱(۱۳۵۴س ذی الحجته الحرام۱۴)دتعدیل دضمیمو سره.

۱۳– د ګمرک د تعرفی اصولنامه ۱۳۲۱ ل دلیندی۱۱(۱۳۶۱س ذوالقعده ۲۶)د تعدیل دضمیمو سره.

۱۴–د پست اصولنامه ۱۳۱۵ ل د تلي ۷

۱۵–د تابعیت د تذکری اصولنامه ۱۳۱۵ ل دوړی۱۵(۱۳۷۵س د رجب ۱۱)دتعدیل دضمیمو سره.

۱۶–د تلګراف اصولنامه ۱۳۱۷ ل دوړی۱۵(۱۳۷۵س د رجب ۱۱)دتعدیل دضمیمو سره.

۱۷–د سوداګری د خونواصولنامه ۱۳۱۸ ل دکب۲۴

۱۸–د دلالی اصولنامه ۱۳۲۱ ل دچنګابښ۲۳(۱۳۶۴س دجمادالثانی ۲۶)دتعدیل دضمیمو سره.

۱۹–د ابتدائیه دعوود اوریدلودوخت ټاکلواصولنامه ۱۳۲۴ ل دوړی ۲۷ (۱۳۶۷ س د شوال۱۲) دتعدیل د ضمیمو سره .

د حقونو او جزائی دعوو تمیز او مرافعه :

۲۴. د پاڼود مدیریتونو اصولنامه ۱۳۱۲ ل لړم ۱۴ (۱۳۵۲ س د رجب ۱۷ ) دتعدیل او ضمیمو سره.

۲۵. د واده د نکاح اصولنامه ۱۳۲۸ ل دوړي۲۸ (۱۳۶۸ س د جمادی اول ۲۸) دتعدیل د ضمیمو سره.

۲۶. د فاتحی دمراسمو اصولنامه ۱۳۲۸ ل دوړي۲۸ (۱۳۶۸ س د جمادی اول ۲۸) دتعدیل او ضمیمو سره.

۲۷. دښارویو د محصول اصولنامه ۱۳۱۱ ل د وږی ۱۰ دتعدیل او ضمیمو سره .

۲۸.د دولتی تحویلخانو د مالونودخرڅلاواصولنامه ۱۳۱۳ ل دوړي۲۶ (۱۳۵۲ س د ذی الحجه ۳)د تعدیل او ضمیمو سره.

۲۹. د ښاروالی اصولنامه ۱۳۲۶ ل دوږی۱۰ (۱۳۶۶ س د شوال ۱۷ )د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۰. د جیل او توقیف خانی اصولنامه ۱۳۱۳ ل دغوایي ۵ (د محرم ۲۰) د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۱. اصولنامه ۱۳۱۴ ل دجنگاښ ۱۰(۱۳۵۴ س دربیع اول۲۹) د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۲.د جوهری رنګونود واردولو اصولنامه ۱۳۱۴ ل دمرغومی ۲(۱۳۵۴ س دشوال ۲۱) د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۳.ددیپلوماتیکوپلاوواوبهرنیوقونسلګریو اصولنامه ۱۳۱۴ ل دتلی ۱۲(۱۳۵۴ س درجب ۷ ) د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۴. د بیوزلو د اداری اصولنامه ۱۳۱۴ ل دلړم۱۸(۱۳۵۴ س دشعبان ۱۳) د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۵. د ټولنیزو ګټو دپاره د استملاک اصولنامه ۱۳۱۴ ل دلړم۱۸(۱۳۵۴ س دشعبان ۱۳) د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۶. د درملتون اصولنامه ۱۳۳۵ ل د غوائی ۵ د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۷. د دولت د خزانو اصولنامه ۱۳۱۱ ل د تلی ۱۷ د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۸. د تابعیت اصولنامه ۱۳۱۵ ل د لړم ۱۶ د تعدیل او ضمیمو سره.

۳۹. د ګمرکونو اصولنامه ۱۳۰۳ ل دغوائی ۱(۱۳۵۳ س دمحرم ۶) د تعدیل او ضمیمو سره.

۴۰. په افغانستان کی د بندونو او ویالو لاندی م ځکو د خرڅلاو اصولنامه ۱۳۱۸ل د تلي ۲۲ // //

۴۱. د بانک د اساسنامی اصولنامه

۴۲. د رادیو اصولنامه ل دزمری۱۵(۱۳۶۷ س دروژی ۲۱) د تعدیل او ضمیمو سره.

۴۳. د صنعت د هڅونی اصولنامه د وری ۲۰ (۱۳۶۷ س دجماد الثانی ۱۸) د تعدیل او ضمیمو سره.

۴۴. د سوداګری اصولنامه ۱۳۲۱ل دغبرګولی۳۰(۱۳۶۱ س دجماد الثانی ۵) دتعدیل او ضمیمو سره.

۴۵. د سوداګری د ثبت اصولنامه ۱۳۲۱ل دغبرګولی۳۰(۱۳۶۱ س دجماد الثانی ۵) دتعدیل او ضمیمو سره.

۴۶. اصولنامه ۱۳۲۱ل دلیندی۵(۱۳۶۱ س دذیقعده۲۶۵) د تعدیل او ضمیمو سره.

۴۷. د صنعتی موسسود کارګرانو اصولنامه ۱۳۲۴ل دمرغومی۲۴(۱۳۶۵ س د صفری ۱۱ ) د تعدیل او ضمیمو سره.

۴۸. د اداری چارو د تفتیش د لوي ریاست اصولنامه ۱۳۲۵ل دغوائی۱۰(۱۳۶۵ س دجماد الاول ۲۸) د تعدیل او ضمیمو سره.

۵۳. د دولتی انحصاراتو د رياست اصولنامه		۱۳۳۱ل دکب ۷ (۱۳۷۲ س دجمادالثانی۱۱)د تعديل او ضميمو سره.

۵۴. د غلی د رانيولو په هکله اصولنامه		۱۳۳۰ د مرغومی ۱۱

۵۵. د ترافيکو اصولنامه.

۵٦. د بنديانو د تبنتی ، په خپل لاس د جنين نقصانول ، دموټرو واردول او د مامورينو او مستخد مينو په هکله يو شمير واحدي مادی .

۵۷. //		اصولنامه		۱۳۲۹ ل د مرغومی ۱٦

۵۸. د تقاعد د خزانی اصولنامه		۱۳۳۳ ل کب.

۵۹. د قونسلګريو په واسطه دمحصولاتو د ترلاسه کولواصولنامه.

٦۰. د کجکی د بند لاندی ملکيتونو د تصفيی اصولنامه.

٦۱. د احتياط ظابطانو اصولنامه.

٦۲. د ترياکو دکرلو اصولنامه.

٦۳. د ملکی هوائی چلند اصولنامه.

٦۴. د ځمکنيو او هوائی ځواکونو د ورو ظابطانو اصولنامه.

٦۵. د ملکی هوائی د اسانتياوو اصولنامه.

٦٦. د عسکری د ترفيع او تقاعد اصولنامه.

٦۷. د ښاروالی اصولنامه.

٦۸. دعدلي اداری محاکمو اصولنامه.

٦۹. د حقوقي اجراآتو اصولنامه.

۷۰. د سر شميرنی اصولنامه.

۷۱. د سکوکو اصولنامه.

۷۲. د واده او نکاح اصولنامه.

۷۳. د ترياکو د نه کرلو اصولنامه.

۷۴. د افغانستان د جنډی (بيرق) اصولنامه .

۷۵. د سودا ګری اصولنامه.

۷٦. د مشورتی غونډو اصولنامه.

۸۱. د اجيرانو او مستخدمينو اصولنامه.

۸۲. د محاسبې او بودجې اصولنامه.

۸۳. د ملکي ويش اصولنامه.

۸۴. د ملاوونو او نبنانونو اصولنامه.

۸۵. د متخصصينو او عالمانو د چوپړ اصولنامه.

۸۶. د مسلکي پرسونل اصولنامه.

۸۷. د محاسباتو د ديوان د تفتيش اصولنامه.

۸۸. د ملکي ماموريتو د شتمنيي د ثبت اصولنامه.

۸۹. د ماموريتو د جرايمو د جزا اصولنامه.

۹۰. د باقياتو د محاکمو اصولنامه.

۹۱. د سوداګرۍ د محاکمو اصولنامه.

۹۲. د نفوسو د سجل د ثبت اصولنامه.

## د ۱۳۰۹ کال د اساسي قانون له مخې دملي شورئ د مجلس تشکیلات چي د لوئی جرگی څخه تیرشویدی

**اساسي اصول:**

۲۸. دا مجلس په کلي او ټولیزه توگه د هغو کسانو څخه جوړ دی چي د افغانستان په سیاسي او اقتصادي چاروکي شریک او د هیواد د ټولو وگړو استازی وی.

۲۹. د ملي شورئ د مجلس ترتیب او تشکیل د هغو استازو څخه دی چي د کابل ، نورو ولایتو او علاقه داریو څخه ټاکل شوی او د دائریدو ځای پلازمینه دی .

۳۰. د ملي شورئ د استازو شمیر د ټاکنو د مصوبې په اصولنامه کي درج او څرگند شویدی.

۳۱. د دی مجلس د استازو د ټاکنې موده په ټولو دورو کي دری کاله ده ، د لمړی دورې د پیل نیټه د ملي شورئ د پرانستلو د ورځې څخه شروع کیږی، تثبیت ده چي د دری کلونو په تیریدو سره باید استازی د سره و ټاکل شي ، که چیری ټا کونکی وغواړی چي پخواني استازی په خپله خوښه د بیا دپاره وټاکي اختیارمند دی .

۳۲.د ملي شورئ د رخصتی او کار وختونه د مجلس په داخلي اصولو کي څرگند کړ شویدی ، د رخصتی په وخت کي که چیری حکومت د کومې اصولنامې وضع کولوته اړتیا احساس کړی دا اصولنامه په لنډمهاله ډول د حکومت له خوا تصویب او د شاهی فرمان له مخې د پلي کیدو وړ دی.

۳۳. د ملي شورئ مجلس د مهمو مسئلو د پریکړی او څیړنې دپاره د رخصتیو په وخت کي هم که چیری د بحث وړ مسئلې د وخت د تیریدلو ویره وی غونډه جوړیدای شي.

۳۴. هغه وخت مذاکری پیل کیدای شی چي لږ تر لږه نیمائی غړی حاضروی او د پریکړو مقررات هم د رایو په اتفاق یا اکثریت سره وی.

۳۵. ملي شورئ د خپلې هری دورې د پرانستلو پر وخت د پاچا په وړاندې خپل رپوټ ورکوی او د قرین الشرفه همایونی له خوا دمنلو وړ گرځي.

۳۶. لمړی په مجلس کي شامل غړی په وار سره قسم یادوی او قسم نامه لاسلیک کوی.

**قسم نامه**

۳۷. مونږ دا لاندی لاسلیک کونکی د هغه باور له مخې چي ملت او حکومت پر مونږ کړیدی په لوی

## دندې

۴۰. د ملي شورئ مجلس خپلې داخلي چارې لکه د لمړي او دوهم رئيس ، د تحريرپلاوي او نور د مذاکرو د اصولو اجزاوی، څانګي او نور د داخلي اصولنامې پر بنسټ تنظيموی.

۴۱. د دمګړي وضع شوي ټول اصول او ضوابط چې دحکومت د ستنود ټينګښت او د هيواد د انتظامي چارو د پاره اړين دی د ملي شورئ د مجلس له خوا تصوبيږی.

۴۲. د مالي چارو د تسويد، رد يامنل او په هغه کې لږوالي يا زياتوالي او هم نوی مميزات چې د دولت له خوا پکښې راځي د ملي شورئ له خوا ترتيب کيږی.

۴۳. د ماليې وزارت د وړانديز ترجوړونې وروسته د هيواد د بودجې څيړنه او تصويب د ملي شورئ د دندو څخه ده .

۴۴. د نوی اصولنامې وضع کول او يا د موجوده قوانينو بدلون يا منځه وړل د ملي شورئ د تصويب پر بنسټ به ترسره کيږی که د هغې اړتيا د جرګې له خوا او يا د وزيرانو له خوا ښکاره شوی وی .

۴۵.د لويو شرکتونو او کمپنيو د امتياز تصويب په هر ډول او سرليک چې وی د ملي شورئ له خوا ترسره کيږی.

۴۶. د معاهدو او مقاولو د تړون د امتيازورکول ، انحصاري که سوداګريز ، صنعتي او يا کرهنيز وی که د دننه او يا بهر له خوا وی د ملي شورئ د جرګې له خوا په تصويب رسيږی.

۴۷. دولتي پوروونه که کورني يا بهرني په هر سرليک يا نامه چې وی د ملي شورئ د مجلس په خبرتيا او تصويب رسيږی.

۴۸. د اوسپنې د پټلي غزول او پر لارو ، واټونو شګي اچول که د دولت په پيسو يا د بهرنيو کمپنيو او شرکتونو په لګښت وی ټول د ملي شورئ د جرګې په تصويب رسيږی.

۴۹. د ملي شورئ مجلس حق لری چې په مناسب وخت کې همايونی حضور ته د عرض پاڼه وړاندی کړی اما د عريضې وړاندی کول د يو ګډه شپږ کسيزپلاوي له خوا د رئيس په ګډون چې د نورو طبقوله خوا ټاکل کيږی ، صورت نيسي او حضور ته د شرف يابۍ وخت هم لمړی د دربار د وزارت له خوا غوښتل کيږی.

۵۰. وزيران د مذاکرا تو د اوريدو د پاره د ملي شورئ په غونډو کې ګډون کولای شي او هم حق لری چې د اړتيا په وخت کې د رئيس په اجازه د چارو د کره کتنې او مذاکرې دپاره توضيحات ورکړی. په

۵۲. که د مجلس رئیس لازم وګڼی کولای شي چي خپله یا د جرګې د لسو غړو یا د وزیر په وړاندیز داسي پټه غونډه جوړه کړی چي د ورځپاڼو او کتونکو استازی پکښی ګډون ونه لری او همدارنګه کولای شي داسي یوه پټه غونډه د یو شمیر ټاکل شوو استازو په ګډون چي نور غړی هغه ته د ورتلو حق ونلری جوړه کړی خو د پټی جرګې یا انجمن پایله هغه وخت د مراعت وړ ده چي په دواړو حالاتو کی تر بحث لاندی مسئله د ټاکل شوو کسانو د څلورمی برخي حضور ته وړاندی او خبری پري شوی او د رایو په اکثریت سره منل شوی وی په هغه صورت کی چي په مجلس کی د مطلب پټ ساتل منل شوی وی په مجلس کی موضوع څوک نه یادوی او مسئله پټه ساتل کیږی.

۵۳. که چیری پټه غونډه د رئیس په وړاندیز دائره شوی وی بیا نو که د خبرو پایله تر یو مناسبه ځایه ونوروته ورسول شي کومه ستونزه نه پیښوی، خو که د وزیر په غوښتنه مجلس دائر شوی وی په هغه صورت کی د مذاکراتو بربنډول د وزیر په خوښی پوری اړه لری.

۵۴. که د وزیر له خوا څخه پر وړاندی شوی مطلب باندی بحث صورت نیولي هم وی وزیر د مجلس څخه د هغه د مستردی حق لری خو که هغه د جرګې په غوښتنه وی داسترداد د پاره ئی د مجلس موافقه هم شرط ده.

۵۵.که چیري د وزیر له لوری وړاندې شوی لایحه د مجلس له خواونه منل شي د خپلو ملاحظو سره ئی بیرته ور استوی دا لایحه هغه وخت د دوهم ځل لپاره مجلس ته وړاندی کیدای شي چي وزیر د مجلس ملاحظات رد او یا ومنی.

۵۶. د ملي شوری د مجلس د غړو رائی د مطلب د رد یا منلو په هکله مطلب واضح او روښانه کوی، هیڅ څوک نشی کولای چي دوی د خپلو رایو په ورکولو هیله مند یا تهدید کړی د مجلس د غړو د رد یا منل ښکاره کول د تورو او سپینو پاڼو په وسیله دی چي لیدونکی اود ورځپاڼو استازی د هغوی په لیدوسره پوهیدلای شي او مطلب اخستیلای شي .

**د جرګې له خوا د مطلب عنوان:**

۵۷. هر یو مطلب چي د مجلس د غړو له خوا وړاندی کیږی هغه وخت د مذاکری وړ دی چي لږ تر لږه د غړوڅلورمه برخه نوموړی مطلب تصویب کړی. په دی صورت که نوموړی طرح په لیکلی ډول د مجلس رئیس ته وړاندی کیږی ، د مجلس رئیس کولای شي چي هغه لایحه د کره کتنی لپاره د پلټنی

څخه و مجلس ته د یادونی وړ مواد د یوی لایحې او خپل نظر سره د مجلس رئیس ته وړاندی کوی او د رئیس په اجازه په مذاکرو کی مطرح کیږی.
هغه مواد چي بشپړیدو ته اړتیا ولری او یا پر هغه باندی د مجلس مذاکری ته اړتیانه وی په لازمودلیلونو درئیس لخوا بیرته اړوند وزارت ته لیږل کیږی . د څیړنی د انجمن غړی لږ ترلږه لس کسه دی .
۵۹. هغه مطالب چي د ۵۷ اصل له مخی په مجلس کی مطرح کیږی که چیری په وزیر پوری اړه ولری باید نوموړی لایحې د مذاکری او څیړني پر وخت که د پلټنی په انجمن او یا په مجلس کی وی اړونده وزیر ته خبر ورکړشی چي شخصاً حاضر شی او یا خپل معین را واستوی یا غوندہ د لایحې او ضمیمو یو نقل د وزیر یا معین تر غوښتلو مخ کی د دوی د خبرتیا لپاره د ۱۰ څخه تر ۱۵ ورځو پوری وزارت ته واستوی.
۶۰. په هغه صورت کی چي وزیر د مجلس پر رالیږل شوو مطالبو د کوم مصلحت له مخی موافقه ولری لازم دی خپل عذر تصریح او مجلس ته قناعت ورکړی.
۶۱. د ملی شوری مجلس که د کوم وزیر څخه توضیحات وغواړی وزیر په ځواب ویلو مکلف دی او بیله قانع کوونکی عذره د ځواب ځنډول هم جواز نلری. په هغه صورت کی چي مطلب محرم او پټ ساتل ئی تر یو وخت پوری د ملت او دولت صلاح وی ، د معلومی مودې تر تیریدو وروسته اړ دی چي نوموړی مطلب جرګې ته ښکاره کړی.
۶۲. د اتباعو ځانګړی عریضی چي په رسمی دائرو کی د اړوند وزارت تر مرکز پوری وربانډی غور نه وی شوی د خپل هغه استازی له لاری چي په غونډه کی ګډون لري عرض او شکایت کولای شی د شوری د ریاست له خوا دا ډول عریضی د صدرات مقام ته استول کیږی.
۶۳. د پاچا د مړینی په وخت کی که چیری ملی شوری رخصت وی حتماً به دائریږی‌او د پا چا د مړینی وروسته تر شلو ورځو نه زیات باید مجلس ونه ځنډول شی.
۶۴. که د پاچا تر مړینی وروسته د استازو دوره پای ته رسیدلی وی او د مړینی په وخت کی نور استازی نوی ټاکل شوی د پخوانی دورې استازی مجلس دائروی.
۶۵. کوم مواد چي د ملی شوری په مجلس کی تصویب کیږی باید د اسلام د مبین دین د حکمونو او د هیواد د سیاست سره مخالفت ونه لری.
۶۶. د ملی شوری د مجلس ټولی مصوبی او پریکړی د شاهانه ذات تر لاسلیک وروسته د اجرا وړ دی .

## لمړۍ دوره

د ملي شوری لمړی دوره چي په ۱۳۱۰ کال کی ئی په کار پیل وکړ ستونزی او خنډونه چي د نوی پارلمان په اداری سیستم کی د استازو د ابتدائی توب له کبله او د لویو غونډو د انسجام ، د حکومت سره اړیکی ، د حکومت او استازو د پاڼو او وړاندیزو مطالعه، د اجندا جوړونه ، د غونډو د پیل او ختم د ملي شوری په لمړی دوره کی د ج– ع – ج عبدالاحد خان د ملي شوری د رئیس او اداری هیئت مخ ته پراته وه ، خو مجلس په لمړی ګام کی بریالی شو د داخلی دندو د اصولو پر بنسټ چي د ۱۳۱۰ کال د لړم د میاشتی پر ۸ نیټه ترتیب شو او په هغه کی د اداری هیئت او استازو دندی ټاکل شوی وی خپلی داخلی چاری تر یوځایه برابری کړی .

دا دوره د پارلمان یوه نوی او ازمایښتی دوره وه ، چي زمونږ د خلکو په سیاسی او ټولنیز ژوند کی ئی د تقنینیه قوی بنسټ کیښود ، د هغه خنډونو او ستونزو سره سره چي مخ ته ئی پرتی وی د ملي شوری او اعیانو په لمړی دوره کی یو لړ مهم کارونه سر ته رسیدلی چي لړلیک ئی د دی ټولګي (مجموعی) په پاڼو کی شته .

په دی دوره کی مجلس وکولای شول چي د وخت د غوښتنی سره سم ځانګړی کمیسیونونه جوړ او په خپلی اجندا کی پر شاملو موضوعاتو تر هغه اندازی پوری چي د وخت او چاپیریال شرائطو اجازه ورکول مهم تصویبونه او پریکړی وکړی ، د دی دورې استازی د اداری هیئت په ګډون ۱۱۱ کسه ، د کار دوره ئی ۳ کاله او د مجلس ځای یي د شاهی ارګ سلام خانه وه .

هيواد د سعادت د پاره ئى لرم د عمل جامه ورواغوندم او خپله ستونزمنه او درنده دنده په ارام وجدان او پاک ضمير سرته ورسوم.

زما ورونو : دا ځاى چي د ملت د هيلو كور دى او د قوم د استازو ټولنه ده زه غواړم خپل مطلب د هغو كسانو په حضور كى ادا كړم چي هر يو ئى د ملت د يو غتى كتلى استازى توب كوى .

زما ورونو ! په باور سره هيڅ څوک نشته چي د خپل كور او هيواد څخه بيخبره ا وسى او پوه نشى چي دهيواد اوضاع څنگه ده ، زمونږ اوسنى حالت څنگه دى ، كه ووايم چي نيمگړتياوى نشته هم پرخپل ځان او هم د ټولنى پر وګړو ظلم كوم بايد اعتراف وكړم چي زمونږ هيواد و ښستيز سمون ته اړتيا لرى ، د تمدن د كاروان او قافلي څخه ډير وروسته پاتى دى ، يوازني وسيله چي كولاى شى زمونږ تير غفلت جبران كړى د ملت او حكومت بشپړ يووالى او همغږى ده چي په يوه روغه نقشه ، قربانى او زيار سره وكولاى شو خپله لويه نيمگړتيا تلافى كړو .

زه وياړم چي نن د ملت د استازو په منځ او د ملت په كور كى حاضر شوي او د ملى شورى مجلس ته د گران هيواد د چارو په هكله وينا كوم او د قوم د درنو استازو سره د افكارو تبادله او مشوره كوم او خپلى هيلى په منځ كى ږدو او د دموكراسى په ښكلى اسلوب سره خبرى كوو.

دموكراسى زمونږ لپاره يوه نوي خبره نده بلكه يو غوره يادگار او خاطره ده چي ۱۳۰۰ او څو كالو څخه وړاندى زمونږ د اسلام د پيغمبر(ص) څخه را پاتى ده. زمونږ پاک أئين د دموكراسى ډير ښه مبلغ دى او په ډيرښه ډول دبرابري او دموكراسى ښكارندوي دي .

زما ورونو ! زه كولاى شم ووايم چي رښتنى دموكراسى كولاي شو د اسلامي نړى په هغه ورځ كى پيدا كړوچه په هغو بختورو ورځو كى وروروليى او يووالى په خپل ټول قوت سره وجود درلود ،په ټولو شيانو كى مطلق عدالت او برابرى وه ښائى چي د بدوى اعرابى اوغسان پاچا خاطره د خداى د كور په شاوخوا د دموكراسى ډيره ښه او ښكاره خاطره وى چي تر نن پورى ئى نړى په ياد لرى او ممكن په راتلونكى كي ئى هم له ياده و نه باسى.

نو زه چي دلته د دموكراسى په هكله خبرى كوم او ستاسى ورونو سره ږغيږم مطلب مى هغه د اسلام رښتينى دموكراسى ده. هغه دموكراسى چي د پرهيزگارى په ډير ټينگ بنسټ ، اخلاق ، وطن پرستى ، قربانى ، زحمت او عدالت ولاړه ده ، او دا دموكراسى ده چي ټولنى ته د ژوند د رښتينى لورى لارښوونه كوى ، د ظلم او بى عدالتى ريښى له منځه وړى د بشر بيلابيل نژادونه د غلطى او گمراهى څخه ژغورى

او قدر په سترګه نه ګورو، په هغه عمل نکړو او په هغه سپیڅلی بنسټیز او کلکه لاره خپل د ژوند بنسټ ونه دروو دا ځکه چي زما په آند مونږ په ننی نړی کی نشو کولای بیله دغی ربښتینی لاری پر بله لار ولاړ شو او یائی تعقیب کړو. یواځی د نن ورځی خبری زمونږ دپاره بس نه دی او د یو ملت نیکمرغی یواځی په خبرو نه ترسره کیږی بلکه عمل په هغه کی ډیر رول لری ، د نن ورځی نړی تر خبرو عمل ته ډیره اړتیا لری او د افغانستان د ننی نسل دنده ده چي کوښښ وکړی د لوړپوړی ربښتنی دموکراسی بنسټ په ډیر کلک او خلل نه منونکی تهداب باندی کیږدی ځو زمونږ دنیا او اخرت د نیکمرغی لامل او مونږ و نیکمرغی بختوری لاری ته نږدی کړی خو باید ووایم چي و دی نیکي هیلی ته د رسیدو لپاره مناسب وخت او زمان ته اړتیا ده چي د ملت او حکومت د شپی او و رځی کوښښ ورسره مل وی. دا دی هغه هدف چي زه ئی لرم او هغه هیله چي زما د زړه څخه سرچینه اخلی ، هیله مندیم چي د لوي خدای په فضل او د ملګرو په مرسته وکولای شم هغه پلی کړم ، زه عقیده لرم که مونږ یوه ښنته په اساسی ډول د خپل سبا لپاره کیږدو تر دغه ظاهری بناوو چي پرخیالي او موهوم اعمالو ولاړی دی ښه به وی . ځکه نشو کولای د یو ملت برخلیک ته بي له ژور غور په سطحی ډول وګورو.

مونږ باید تر هرڅه د مخه د راتلونکی په فکر کی واو سو او خپل راتلونکی پر ډیر کلک او ټینګ اساس چي د افغانیت او اسلامیت د روح سره کلی تماس ولری نظر کی ونیسو او په دیر پام سره ګام پورته کړو ځکه بي سنجشه تلوار او د سمی طرحی نه درلودل په ژوند کی نه یواځی دا چي مونږ د هدف څخه لری کوی بلکه ورځنی ستونزی مو نوري هم زیاتوی ځکه نو زه چي څه وایم او یا ئي غواړم په ارام روح، پاک اسلامیت او افغانیت په هغه باندی عمل پیل کوم .

ترټولو مخکی وینم چي اصلاحی پروګرامونه ترکومه حده پلی کیدای شی، ځکه زه خپل ځان اړین بولم کوم څه چي وعده ورکوم پر هغه باندی وفا او هغه اجرا کړم . زه نه غواړم چي هغه جمله ادا کړم چي یوازی د خپل شهرت او یا ستاسي د ظاهری خوشحالی دپاره وی.

ورونو زه د خپل هیواد د راتلونکی ژوند د پایښت لپاره اړ یم د یو مسوول صدارعظم په توګه د هیواد د مهمو مسئلو پر شاه خوا غور وکړم د چاپریال وضعیت او د هیواد اقتصادی بنسټ په پام کی ونیسم او د افغانستان د پرمختګ لپاره اقدام وکړم او هیواد د پرمختګ لپاره می باید ټولی لاری په پام کی وی او ګام پورته کړم ځو د خدای په مهربانی وکولای شم خپل ملی موخی او هدف ته ورسیږم او هغه څه چي د خواره واره کیدو لامل ګرځی او زمونږ هیواد د بدبختی کندی ته اچوی باید د بیخ او بنسټ نه ایسته او د

ټولنیزومفاسدو سرچینه بڼی دی ، دا ټولنیز مفاسد دی چي ډیری ناخوالی رازیږوي او زمونږ په ټولنه کی دا یوه زړه او پخواني ناروغی ده چي د هغه د درملنی لپاره اغیزمن درمل پکار دی، زه باور لرم چي د ملت استازی به د دی خبیثي ناروغی د رغونی په موخه د ټول ملت په ګډون زما سره مرسته وکړی.

یو بله د یادونی وړډیره مهمه مسئله د پښتونستان د خپلواکی موضوع ده او باور لرم چي ملت به په ډیری مینی سره هغه بدرګه کړی او دا مسئله زما لپاره یو احساساتی اړخ نلری بلکه په ملی ټینګ سیاست او په اوسنی نړیوال روش باندی تکیه لری او د افغانستان د نوامیسو څخه ګڼل کیږی ، د دی روا حق د تامین لپاره د پښتونستان ملت چي د افغانستان د هیواد سره د ژبی ، دود او دستور ، دین اونژاد ګډی او نه بیلیدونکی اړیکي لری اخلاقاً مکلف یو چي د هغوی د استقلال او خپلواکی څخه ملاتړ وکړو او د افغانستان حکومت هیله من دی چي د پاکستان حکومت ډیر ژر ودی مسلم حقیقت ته متوجه او بشری ټولنه د خپلواکی د حق او عدالت پر بنسټ د هغه د حل لپاره ګام پورته کړی ، باور دی چي د افغانستان حکومت به په سوله ئیزه توګه د دی ستونزی د حل په لاره کی اقدام وکړی .

په نني نړی کی چي خپلواکی تر هر څه ډیر ارزښت لری او تر جغ لاندی ملتونه چي پیړی ئی د پردیو تر جغ لاندی ژوند کړی دی او د خپلی خپلواکی لپاره زیار باسی او غواړی چي خپل ملی حکومتونو ولری ، ایا د تعجب ځای ندی چي د پاکستان حکومت وغواړی د پښتنو غیرتمن ملت د خپل هیواد برخه وګرځوی او یوازی په دی پلمه چي هغوی مسلمانان دی باید ووایم چي خدای دي نکړی د پاکستان په عقیده مسلماني د پشتنو لپاره ګناه ګڼل کیږی چي باید هغوی تر جغ لاندی وی. خوهغه څوک چي دا دعوی کوي او وایی چي اسلام قومیت ، سیاسی واحدونه او جغرافیائي پولي نه پیژنی، سهو او خطا ئی کړیده ځکه په ټولو اسلامي هیوادو کی حتی د حجاز په مقدس هیواد کی چي د اسلام د مقدس دین مبدا ده د دی مبارک آیت د حقیقی معنا په پام کی نیولو چي

( انماالمومنون اخوته) د جلا تشکیل او حقونو درلودونکی دی.

ورونو ! زه تاسو ته ډاډ درکوم چي عادل خدای به هیڅ کله پري نږدی هغه مسلمان زړه ور او غیرتمن ملت چي د کلنو په اوږدو کښی د محمد (ص) د دین د پراخوالی لپاره ئی توره په لاس او سرونه ئی بایللي دی په داسی وخت کی چي په جهان کی تر جغ لاندی هیوادونه د ازادی ونعمت ته رسیږی هغوی د دی خدائی نعمت څخه بي برخی کړی.

ورونو دا باید ووایم چي ملت نباید پردیو ته د هیلو سترګی نیولي وی او د نورو په مهربانی ژوند وکړی

دوستانو ! افسوس د هغه ملت پر حال باندی چي دی حقيقی ټکی ته پاملرنه نکوی او د ټولنيزی نيکمرغی څخه ځاني ګټی ته ډيره پاملرنه کوی او په هوښياری سره د خپل ژوند ليک پيروی ونکړی او په خپل وطن کی د هر ډول پيښو سره د مخامخ کيدو او سرښندنی لپاره ځان چمتو نکړی .
هغوی چي په بي پروائی او ځان غوښتنی سره غوارړی ژوند وکړی ورک او د منځه به ولاړ شی .
زمونږ نومياليو پلارونو او سرښندونکو سپيڅلو نيکونو د هيواد د ساتنی او ملک د څارنی او زمونږ د ملی ناموسونو او حقونو د ساتنی لپاره بيله قومی او ژبنی مخالفتونو او دا چي زه څوک يم او ته څوک ئی په سر ښندنی او ځان تيريدنی سره د مورنی وطن په مقابل کی خپل اخلاق او وجدانی مسئوليت اجرا کړيدی او مونږ بايد دي حقيقت ته پاملرنه ولرو او فکر وکړو هغه ملت چي ملی يووالی نلری بايد ومنی چي هيڅ شی نلری او هيڅ کار د هغه د لاسه پوره ندی ، ملی يووالی د ټولو ريښتونو وطن پرستو موخه وی او د تل دپاره بايد هغه ته د يو ځانګړی عقيدي او درنښت په سترګه وکتل شی .
ورونو ! زمونږ د هيواد حالت هغي کښتی ته پاتی کيږی چي د سمندر د قهرجنوڅپو پر مخ باندی سرګردانه وی که هرګړی خپلو کړو وړو ته پاملرنه ونکړو البته چي د ډيرو لويو خطرونو سره به مخامخ شو .
په دی برخه کی ملی شوری او د افغانستان حکومت دواړه د تاريخ په وړاندی ډير لوي مسئوليت لری چي هغه ته پاملرنه وکړی او په خپلی ټولی ځيرتيا او لرليد سره د زمانی اوضاع تعقيب کړی ، که چيری يو ملت ځيرتيا او لرليد ونه لری باور دی چي د زمانی ډير خواشينونکی ګوزارونه به بدرګه کړی .
ورونو ! د افغانستان حکومت د تل لپاره د نورو حقونو ته درناوی کوی او خپلو ګاونډيانو سره لکه څنګه چي د يو نيک او غمشريک ګاونډی دنده ده چلند کوی ، زما د حکومت بهرنی سياست د نړی د ټولو هيوادونو سره پر بالمثل کړو وړو ولاړ دی هر څوک چي زمونږ حقونوته په درنه سترګه وګوری د افغانستان ملت او حکومت به هم د هغه سره يو په زړه پوری دوست وی او تل به په خپله دوستی او محبت باندي ټينګ ولاړ وی .
په پای کی د درنو استازو د علاقی او باور څخه منه کوم او بيا هم استازو ته په ډاګه کوم چي بيله فکره او عمل د يووالی او عمومی ربړايستلو د افغانستان حکومت او ملت به ونتوانيږی چي خپل سپيڅلو او نيکو هيلوته ورسيږی.
جناب صدراعظم د هيواد د نيکمرغی ډيره مهمه وسيله د هيواد د ټولو طبقو يووالی او پيوستون وباله او

زما ورونو ! باور ولری چي داسی ورځ رارسیدونکی ده چي نه به زه صدراعظم او نه به تاسی استازی
یاست ولی انشاالله ګران افغانستان به د تل لپاره پاتی وی نو له دی کبله باید خپلی دندی وپیژنو او داسی
کار وکړو چي د خپل لوی خدای، مهربان پروردګار ، د افغانستان تاریخ او راتلونکی ته شرمنده او
سرخوړند و نه اوسو.

## د حکومت د تګ لاری په برخه کی د صدراعظم سردارمحمدداود وینا چي د ۱۳۳۲ کال د تلی پر څلورمه نیته د یکشنبی په ورځ ئی د شوری په جرګې کی پخپله بیان کړه

ویاړم چي په دی ملی جرګې کی د ملت د استازو په حضور کی چي د حقیقی دموکراسی بیلګه ده
قرارلرم. د هیواد د جوړونی او اصلاحی بیلابیل پروګرامونه چي د حکومت ترغور لاندی دی او تر اوسه
پوری بشپړ شوی نه دی د بشپړیدو وروسته به ئی د موافقی اخستلو د پاره دملت د استازو غوږو ته
ورسوم .

هغه چي اوس ئی په لنډ ډول په عرض رسوم دادی چي :

زما حکومت د ملی یووالی او اسلامی دموکراسی د پیاوړتیا ، د قوانینو د حاکمیت او عدالت د ټینګښت
د فاسدو اخلاقو او بدیو د منځه وړلو او د اقتصادی حالت د ښه والی دپاره پراخ کوښښ کوی ، د
پښتونستانی ورونو د روا حقونو څخه پوره ملاتړ کوی ، د دی دندی سرته رسول د ملت او د ملت د
استازو مرستی او باور ته ضرورت لری او حکومت هغه ته اړ دی. د افغانستان بهرنی سیاست د متقابلی
دوستی پر بنسټ او جهانی سولی خوښونی باندي ولاړی دی ، د ملتونو او دولتونو حقونه د نړیوالو
مقرراتو سره سم محترم بولی .

# د ۱۳۳۳ کال د بودجې په هکله د ماليې د وزير ښاغلي عبدالمالک وينا

د رئيس او د ملت د استازو په اجازه ، نن ځان بختور ګڼم چي د ۱۳۳۳ کال د بودجې لپاره د شورى د غونډو په تالار کى د ملت د درنو استازو په حضور کى حاضر شو يم چي د قدرمن او محترم شخصيت ښاغلي سردار محمد داود په پاملرنه او د همکارانو په زيار د ماليې د وزير په صفت ستاسو حضور ته بودجه وړاندى کوم چي دامکان ترحده په هغه کى علمي او تخنيکي شرايط مراعت شويدى.

زمونږ شاهي حکومت تر اوسه پورى د داسى بودجې لرلو ته اړتيا درلوده چي دا دى د ملت دوست او ترقي غوښتونکي همايونى اعليحضرت د برکت او پاملرنى له کبله ئي د لمړى ځل لپاره د عمل جامه واغوستله.

درنوحاضرينو ! مخکى له دى نه چي د ۱۳۳۲ کال د بودجې په شاوخواکى د مطلب اصل عرض کړم اړين ګڼم چي د هيواد د کورنى احوال او نړيوالى اوضاع په برخه کى د ملت درنو استازو حضورته څه ناڅه بيان کړم .

مونږ په داسى زمانه کى ژوند کوو چي د ( چو عضو بدرد اورد روزګار- ديګرعضو ها را نماند قرار) مفهوم د هر وخت څخه زيات د احساس وړ دى ، دا سمه ده چي افغانستان د دولت د چارواکو تر فدا کاره سيورى لاندى د تيرى نړي سوځونکى جګړى د کړاونو څخه تر يواندازى لرى پاته او دا هم سمه ده چي بيا هم د همايونى اعليحضرت په لوړى ارادى له نړيوال کړکيچ اوافتونوڅخه د افغانستان د حکومت لرى پاتى کيدل د ښاغلي سردار محمد داود د حکومت لخوا مراعت کيږى خو نښى کيداى د فتنو څخه په ډکه نړي کى د هيلو څخه ډک او پرمختيا ته اړ يو هيواد لکه افغانستان په دى اندازه په خپل ځان بسيا شي چي د نورو هيواد ونو وضع وربانډى بى آغيزه وى.

په هر حال له دي سره سره چي نن ورځ د دوهمي نړيوالي جګړى څخه تقريباً نهه کاله تيريږى بيا هم نړيواله ناقرارى په ځانګړى توګه د کوريا اوهندو چين د جګړو له امله او د نړى د لويو دولتونو د وسله وال کيدو ، دورځ په ورځ د زياتيدونکى وسله وال رقابت له امله زمونږ سره انګيرنه موجوده ده . او د نړيوال اقتصاد پرسربانډى ئي يو غټ ګوزار ورکړى دى او هر هيواد خپل اقتصادى او مالى وضعي ته پاملرنه کوى لکه څنګه چي نن زيات هيوادونه د خپلو سوداګريزو استهلاکى مالونو دپاره د صادريدو لاره پيدا کوى او لا تر اوسه خپل هدف ته نه دى رسيدلى.

درنو استازو ! هغه وخت چې مونږ د ۱۳۳۳ کال بودجه جوړوله د نړى ټولى پيښى او د هيواد کورنى اړتياوى چې په پورته ډول يادي شوى د پامه څخه نه دى اچولى .

د۱۳۳۳ کال بودجه د ۱۳۳۲ کال د قطعى حساب تر جوړيدو وروسته د ماليي وزارت لخوا ترتيب او تنظيم شوه.

دا مطلب د ماليي د وزارت د مامورينو په زيار او کوښښ په لاس راغلى دى بيله دى چې رسمى او يا غير رسمى وخت په پام کى ونيسى شپه او ورځ ئى د وزارت د مقام اوامر پرځاى کړيدى چې پايلى ئى د تير کال د قطعى حسابونو ترتيب او وروسته ئى د روان کال مکمله بودجه د کال په پيل کى ستاسو حضور ته وړاندى کړه

د دى مرام عملى کيدل د ملى مالي هيلو دسرته رسيدو او همږغى يو ښه بيلگه ده چې د مالى نوو تشکيلاتو د فعاليت په وسيله چې هيله ده د هغه په برخه کى تاسو ته د شک ځاى نه دى پريښى.

( د بودجې د اعدادو او ارقامو تر توضيحات او اعلان وروسته زياته کړه ) : نن دولت د مصلحانه هيلو او خپلو مالى ، اقتصادى ، سياسى او لويو ټولنزو گامونو په پورته کولو کى لوي مسئووليت لرى.

د نړى د هيوادونو سره د ورځنى اړيکو د پراختيا د وخت او ځاى د شرايطو سره سم داسى اړتياوي منځ ته راځى چې بايد د پانگى د اصلاح او گټى په هکله کلکه پاملرنه او کوښښ وشى ، او د دولت د مالى بهران ليرى کيدل د ماليى د وزارت په غاړه دى .

اِو زه ددى گام پيل د نيکه مرغه په عمل کى وينم او د هغه بيلگه د ماليى د وزارت د ۱۳۳۳ کال په جوړه شوى بودجه کى گورم ، نوځکه هيله منديم چې د دولت د مخ په وړاندى خوځښت نور هم چټک شى او مالى ستونزى ژرترژره حل شى.

په درنښت

# د ۱۳۳۴ څخه تر ۱۳۳۶ کال پورى د ملي شورى نهمه دوره

په دى دوره کى د ادارى هيئت ، ټولنو او انجمنونو تر ټاکلو وروسته د شورى په داخلى دندو پورى اړى چارى داچي د شورى د رئيس د ټاکلو په هکله مخالفتونه منځ ته راغلى وه په پټه توګه راى اخستنه وشوه او په پايلى که د ملي شورى د نهمى دورې رئيس محمد نوروز وټاکل شو. وروسته د اعيانو او شورى دواړو مجلسونو د پښتونستان د مسئلى په هکله ګډه پريکړه طرح او تصويب شوه. او همدارنګه د ۱۳۳۵ کال د زمرى په يوديرشمه نيټه د دولت پنځه کلن اقتصادى پلان او د دولت درې کلنه بودجه تر غور او څيړنى وروسته تصويب شوه او همدارنګه د افغانستان او ايران د ولسونو تر منځ د سرحدى کميسارانو تړون او د افغانستان او پاکستان تر منځ د ملکى هوائى چلند پروژه تصويب او د ۱۳۳۶ مالى کال د شپږو مياشتو د عمومي- انډول د قانون مواد تصويب ، د لګښتى بودجې وړاند وينه ،د وارداتو بودجه او د جوړ شوى ګراف سره سم د ماليي وزارت د بودجې نوي تصويب ، د ترياکو د کښت د بندولو اصولنامه او نور. په دى دوره کى محمد داود صدراعظم خپل پنځه کلن اقتصادى پلان شورى ته وړاندى کړ او په هکله ئى هراړخيزى څرګندونى وکړى او د ماليي وزير عبدالملک د ۱۳۳۵ کال د بودجې پر شا وخوا وينا وکړه او د بودجې د کمښت لامل ئي په مالياتى علمى نظريو سره ښکاره کړ او همدارنګه په دى دوره کى هغه يو شمير اصولنامې چې نوي او يا تعديل شوى وى چاپ او د خلکو په واک کى ورکړې شوى .

### د ملي شورى د نهمى دورې ادارى هيئت

۱. رئيس ع. ج محمد نوروز خان.
۲. د رئيس لمړى نائب د کندهار د مرکز استازى ع.ص صالح محمد خان .
۳. د رئيس دوهم نائب د کابل استازى ع. دوکتور فقير محمد خان شفا.
۴. لمړى منشى د ميمنى استازى محمد رحيم .
۵. دوهم منشى د خلم استازى محمد کبير غيرت.

**د ۱۳۳۴ څخه تر ۱۳۳۶ کاله پورې د نهمې دورې د استازو شمیر**

| ګڼه نوم | اړونده سیمه |
|---|---|
| ۱. فقیرمحمد خان | د کابل مرکز |
| ۲. محمد اسمعیل خان | د کابل مرکز |
| ۳. عبدالباقی خان | چهاردهی |
| ۴. جهان دارشاه | تره خیل |
| ۵. عبدالله علی خان | د بګرامیو شیوکی |
| ۶. میر علم خان | پغمان |
| ۷. سید احمد خان | کوهدامن |
| ۸. احمد جان خان | سروبی |
| ۹. محمد ابراهیم | دایزنګی |
| ۱۰. عبدالرحیم | بهسود |
| ۱۱. محمد اکبرخان | دایکندی |
| ۱۲. محمد امیر خان | یکاولنګ |
| ۱۳. محمد عیسی خان | لعل وسرجنګل |
| ۱۴. شاه موسی خان | شهرستان |
| ۱۵. غلام نبی خان | پل علم |
| ۱۶. عبدالحکیم خان | میدان |
| ۱۷. محمد نوروز خان | کلنګار |
| ۱۸. عبدالحکیم خان | وردک |
| ۱۹. صالح محمد خان | قندهار |
| ۲۰. عبدالباقی خان | ډنډ |
| ۲۱... | سپین بولدک |
| ۲۲. محمد امین خان | دهراود |
| ۲۳. عبدالرزاق خان | ارغستان |

| | |
|---|---|
| ۲۸. شیر احمد خان | کشک نخود |
| ۲۹. عبدالظاهر خان | دهله |
| ۳۰. عبدالرحیم خان | شوری بک |
| ۳۱. عبدالرحیم خان | ارزگان |
| ۳۲. لعل محمد خان | گیزاب |
| ۳۳. عبدالستارخان | قلات |
| ۳۴. بهاوالدین خان | دایه او چوپان |
| ۳۵. امین الله خان | شینکی |
| ۳٦. محمد سرور | جلدک |
| ۳۷. داد محمد خان | د قلات کوچی |
| ۳۸. محمد طاهر خان | مرکندو |
| ۳۹. بازمحمدخان | د با دغیساتو قلعه نو |
| ۴۰. حاجی بشارت | مرغاب |
| ۴۱. عبدالرحیم | گلران |
| ۴۲. عبدالرحمن | کشک |
| ۴۳. یارمحمد خان | قادس |
| ۴۴. محمد سلیم خان | جوند |
| ۴۵. فخرالدین خان | غورات |
| ۴٦. محمد اسلم خان | شهرک |
| ۴۷. سلطان محمد خان | چغچران |
| ۴۸. سلطان محمد خان | تولک |
| ۴۹. محمد سرور خان | پرچمن |
| ۵۰. لعل محمد خان | پساوند |
| ۵۱. عبدالشکور خان | غوریان |
| ۵۲. محمد محسن خان | شیندنډ |

۵۷. عبدالعظیم خان　　　پشتون زرغون

۵۸. غلام محمد خان　　　گذره

۵۹. سعدالدین خان　　　اوبه

٦۰. محمد قاسم خان　　　کرخ

٦۱. حسام الدین خان

٦۲. محمد رجب خان　　　نهرشاهی

٦۳. محمد علی خان　　　شبرغان

٦۴. وصال الدین خان　　　سنگچارک

٦۵. عبدالرشید خان　　　آقچه

٦٦. کمال الدین خان　　　سرپل

٦۷. ملا سفر خان　　　قرقین

٦۸. عزیز الله خان　　　بلخ

٦۹. نورالله خان　　　دولت آباد

۷۰. مزین الدین خان　　　کشنده

۷۱. ملا عبدالله خان　　　شورتیپه

۷۲. عصمت الله خان　　　سمنگان

۷۳. محمد کبیر خان　　　خلم

۷۴. بیک محمد　　　دره صوف

۷۵. محمد نسیم خان　　　بغلان

۷٦. محمد جان خان　　　پلخمری

۷۷. امام علی خان　　　دوشی

۷۸. غلام نبی خان　　　نهرین

۷۹. ملا بابه خان　　　اندراب

۸۰. محمد شاه خان　　　قندوز

| | |
|---|---|
| ۸۶. محمد علم خان | چاه آب |
| ۸۷. محمد نبي خان | ینگی قلعه |
| ۸۸. محمد رضا خان | خوست او فرنگ |
| ۸۹. میر مقیم خان | اشکمش |
| ۹۰. محمد ایوب خان | فرخار |
| ۹۱. عبدالقدوس خان | د جلال آباد مرکز |
| ۹۲. محمد همیش خان | خوګیانی |
| ۹۳. عبدالله خان | سرخ رود |
| ۹۴. عبدالعزیز خان | کامه |
| ۹۵. حبیب رسول خان | کنړ |
| ۹۶. محمد شعیب خان | خاص کنړ |
| ۹۷. عبدالقیوم | بر کنړ |
| ۹۸. محمد میربازخان | څوکی |
| ۹۹. احمد شاه خان | د پیچ دره |
| ۱۰۰. شیر محمد خان | لنډ سین |
| ۱۰۱. عصمت الله خان | سرکانو |
| ۱۰۲. حاجی سعادت خان | غلجائی حصارک |
| ۱۰۳. عبدالواحد خان | لغمان |
| ۱۰۴. در محمد خان | نورستان |
| ۱۰۵. شیر علي خان | قرغه ئی |
| ۱۰۶. هدایت الله خان | کوز کنړ |
| ۱۰۷. اقبال خان | شینواری |
| ۱۰۸. علی محمد خان | اچین |
| ۱۰۹. شاه زرین خان | رودات |

۱۱۵. شیرمحمد خان　　گومل

۱۱۶. درمحمد خان　　ځاځی

۱۱۷. گلاب الدین　　څمکنی

۱۱۸. محمد عظیم خان　　ځدران

۱۱۹. حاجی جان محمد خان　　زرمت

۱۲۰. بسم الله خان　　ازره

۱۲۱. عبدالرحمن خان　　سید کرم

۱۲۲. مولوی احمد الدین خان　　خوست

۱۲۳. حاجی محمد خان　　تنی

۱۲۴. تاول خان　　موسی خیل

۱۲۵. خان　　ځاځی میدان

۱۲۶. ازبرخان　　جانی خیل

۱۲۷. اقا گل　　د پروان مرکز

۱۲۸. محمد یوسف　　جبل السراج

۱۲۹. عبدالحق خان　　بگرام

۱۳۰. عبدالرحمن خان　　پنجشیر

۱۳۱. نیک محمد خان　　سرخ پارسا

۱۳۲. عبدالله　　بامیان

۱۳۳. محمد یوسف خان　　کهمرد

۱۳۴. عبدالوهاب خان　　غوربند

۱۳۵. لطف الله خان　　کاپیسا

۱۳۶. عبدالرزاق خان　　کوهستان

۱۳۷. غلام نقشبندخان　　نجراب

۱۳۸. عبدالخلیل خان　　برکنړ

| | | |
|---|---|---|
| ۱۴۴. | محمد حسین خان | جاغوری |
| ۱۴۵. | محمد صابر خان | کټواز |
| ۱۴۶. | محمداسلم خان | شرنه |
| ۱۴۷. | اشرف خان | وازه خوا |
| ۱۴۸. | خدایداد خان | د غزنی کوچی |
| ۱۴۹. | شاه میران خان | د کټواز کوچی |
| ۱۵۰. | عبدالمجید خان | د مرکز استازی |
| ۱۵۱. | محمد دلدار خان | درواز |
| ۱۵۲. | حجت الله خان | جرم |
| ۱۵۳. | احمد خان | کشم |
| ۱۵۴. | عاشور محمد خان | واخان |
| ۱۵۵. | میرزا محمد خان | اشکاشم |
| ۱۵۶. | سلطان محمد خان | د مرکز استازی |
| ۱۵۷. | محمد عمر خان | چخانسور |
| ۱۵۸. | عبدالله خان | بکواه |
| ۱۵۹. | عبدالروف خان | انار دره |
| ۱۶۰. | محمد رحیم خان | د مرکز استازی |
| ۱۶۱. | محمد شریف خان | اندخوی |
| ۱۶۲. | محمد امین خان | پشتون کوټ |
| ۱۶۳. | عبدالروف خان | بل چراغ |
| ۱۶۴. | عبدالاحد خان | شرین تګاب |
| ۱۶۵. | محمد صدیق خان | قیصار |
| ۱۶۶. | محمد منیرخان | د مرکز استازی |
| ۱۶۷. | محمد عمر خان | ګرمسیر |
| ۱۶۸. | محمد محسن خان | موسی قلعه |

## د نهمی دورې د ملي شورى د رياست چارى

د ۱۳۳۴ كال د ملي شورى اجراات دوي برخي لرى چي يوه برخه ئى د شورى دننه او بله برخي ئى په دولتي چارو پورى اړه لرى. تر لمړنيو غونډو او د استازو د باور پاڼو ترتيب او پر وثيقو باندى د ټاكلي كميسيون ترغور وروسته د شورى د رئيس د ټاكلو په هكله چي په غونډه كى د پټو رايو په وسيله راي اچونه وشوه په پايله كى و رياست ته د نوماندو د ډلى څخه د كلنګار د خلكو استازى محمد نوروز خان د رايو په ډيروالي سره رئيس وټاكل شو. د مجلس څخه تر پټى راي اخستينى وروسته پنځو كسو نوماندو د ډلي څخه دكندهار د مركز استازى مولوى صالح محمد لمړى مرستيال او د كابل د مركز استازى ښاغلى حاجي فقير محمد شفا د دوهم مرستيال په توګه د رايو په ډيروالي سره و ټاكل شوه .

د منشيانو د ټاكلو په هكله د مجلس څخه تر پټى راي اخستنى وروسته د څلور كانديدانو د ډلى څخه ښاغلى محمد رحيم شيدا د ميمنى د مركز استازى د لمړى منشى او د مزار شريف د خلم استازى ښاغلى محمد كبيرغيرت د دوهم منشى په توګه د رايو په ډيروالى سره و ټاكل شوه.

وروسته مجلس په خپلو داخلى چارو پيل وكړ، اړونده انجمنونه ئى غوره او د انجمنونو غړى او رئيسه پلاوي ئى و ټاكل.

د استازو يو شمير پاڼى چي مقابل لورى او شكايت كونكى ئى لرل وكتل شوي او تثبيت شوى.

هغه څه چي تصويب شويدى:

۱. د افغانستان بانک د بانک نوټونو د زيرمی د مراقبت د پاره د شورى څخه د دوو كسو استازو ټاكل.

۲. د مزارشريف د سرپل د پطرولو د برمه كارى د تړون تصويب، چي د افغانستان دكانو او صنايع د وزارت او د سويډن د سونكاى د كمپنى ترمنځ ترسره شوى وه.

۳. د ګرشک د لوي حكومت د تعديل تصويب په اعلى حكومت باندى ، او د هلمند د وادى د پرمختيا په هكله دى نوموړى اعلى حكومت په لنډ مهاله توګه د هلمند د پرمختيا د رياست تر نظر لاندى دنده اجرا كړى.

۴. د افغانستان د شاهى حكومت او د يوګوسلاويا د ملى فدراتيف جمهورى حكومت ترمنځ د لنډ مهاله تړون په هكله او د ملكى مامورينو د ټاكنى ، ترفيع او تقاعد د اصولنامې د اتمی مادى سره

٦. د محصولاتو د اخستلو د اصولنامې د پروژې تصويب چې د افغاني قونسلګريو لخوا په بهر کې اخستل کيدى. د ملکي مامورينو د ټاکنې ، ترفيع او تقاعد د اصولنامې د نهمې مادې سره په لنډ مهاله توګه د يوې تبصرې زياتوالى ، په ځانګړې ډول د هغو متخصيصينو د پاره چې د قانون د خپرولو څخه تر پنځو کلونو پورې بيله قيده د لوړو رتبو کفالت وکړي .

٧. د سوداګرې د اصولنامې د پروژې د دريمې برخې تصويب.

٨. د افغانستان د شاهي دولت او اندونيزيا جمهوري دولت تر منځ د دوستى د تړون تصويب، د افغانستان او د شوروى سوسياليستي جماهيرو حکومت سره ترانزيتي تړون.

٩. د ښاروالي د اصولنامې د ٥٣ مادې ،د ١٧ مادې د دريمې فقرې او ديارلسمې مادې د تعديل تصويب. د ملکي مامورينو د ټاکنې ، ترفيع او تقاعد د اصولو د ١٣ مادې تعديل او د ٥٣ مادې سره د يو تبصرې زياتوالى اود ٦٦ او ٩٩ مادو تعديل او د يوې فقرې زياتوالى د نوموړې اصولنامې د ضميمې سره .

١٠. د سوداګرې د پروژې د اصولنامې د لمړۍ او دوهمې برخې تصويب.

١١. د هيواد د دائرو د ١٣٣٤ کال د بودجې او معاش د لګښتونو تصويب، د پانګې اچونې په برخه کې د ١٣٣٤ کال د وارداتو د انډول تطبيق چې د ١٢٠١١٠٩١٦٢ افغاني او اويا پوله کيږي او د ١٣٣٤کال د بودجې د وارداتو او دولتي لګښتونو د عمومي انډول د قانون د پروژې ١١ مادې .

١٢. د ١٣٣٤ کال د بودجې او د تقاعد د خزانې د معاش او لګښتونو په هکله چې څلورميليونه ، ٥٣٠ زره ، ٢٣٦ افغاني او ٧٧ پوله کيږي .

١٣. د سوداګرې د پروژې د اصولنامې د څلورمې ، پنځمې ، شپږمې ، اوونې او اتمې برخې تصويب.

١٤. د عمران دستګاه د پروژې د تړون تصويب چې د افغانستان د شاهي دولت او موريسن د کمپنى تر منځ تړل شوى وه .

١٥. د ١٩٤٩ کال د جون د مياشتې د کار د نړيوالې موسسې د جنوا د عمومي کنفرانس د پنځه ديرش مادو د اجرائي ملاتړ او د حرفوى لارښودونو سپارښت په هکله د مقاولې تصويب.

١٦. د ١٩٤٤ کال د جولاى د ٢٢ نيټې د بريټن کنفرانس د هو کړې په اصولنامې کې د افغانستان

۱۷. د سوداګری د اصولنامې ۴۶۹ مادی سره د یوی تبصری د زیاتوالی تصویب، په ځانګړی ډول د کمیشنر په نامه د دولت د یو تن استازی ګډون د لمټید په سهامی شرکتونو کی د اصولنامې د مواردو د پلی کیدو د څارنی لپاره.

۱۸. د دعوو د اوریدلو د اصولود د ریمي مادی د تبصری د تعدیل تصویب .

۱۹. د کرهنی بانک د اساسنامی د پروژی تصویب .

۲۰. د احتیاط د ظابطانو د اصولنامې د پروژی د ۴۱ او ۴۲ مادو تصویب.

۲۱. د عمومی توحید تصویب.

۲۲. د عسکری مکلفیت د اصولنامې د ۲۲ اصل تعدیل ، په ځانګړی توګه د ځای بدلیدونکو مجلوبینو په هکله .

۲۳. د غنمو د زیرمه کیدو د اساسنامی د پروژی تصویب.

۲۴. د اعیانو او ملی شوری د مجلسونو د فوق العاده جرګې تصویب، په خاص ډول د ښاغلی صدراعظم د وینا په هکله چي د اعیانو او شوری د استازو په وړاندی ئی د پښتونستان د مسئلی د پخوانیو پیښو په برخه اود حکومت ګامونه چي په دی برخه کی ئی اخستی دی په روښانه ډول وړاندی او د مجلسونو نظر ئی د کړنلاری په هکله او د افغانستان د راتلونکی سیاست تعقیب د پښتونستان د موضوع په هکله وغوښت ، چي یاد شوي ګامونه د مجلسینو لخوا تائید شول، او همدارنګه د پاکستان د حکومت د ناوړه عمل چي بیله ټول پوښتنی ئې جبراً پښتونستان د لویدیځ پاکستان په یونټ پوری تړی وغندل او د پښتونستان خاوره ئی د پاکستان د خاوری جز ونه ګڼل او همدارنګه ئي د پښتونستان د ملت د روا حقونه څخه ملاتړ او د صدراعظم سیاست ئی پدی برخه کی په پوره باور تائید او ودی ملی هدف ته د رسیدو لپاره چي ددولت لخوا هر لازم ګام پورته کیږی او په درې مواردو کی قید دی خپل ملاتړ ښکاره کړ.

۲۵. د یو شمیر سړکونو د سمون لپاره د یو کروړ افغانیو د عامه پور تصویب.

۲۶. د افغانستان بانک د ریاست د وړاندیز پر بنسټ د نوی بانکنوټ د خپرولو تصویب، د پشتوانی د قانونی میعاد په پام کی نیولو سره دی تر سره شی.

۲۷. د نوی تذکری د اصولنامې د پروژی تصویب.

## د پښتونستان پر مسئلې د ملي شورى او اعيانو د مجلسونو د فوق العاده جرګې لنډيز

د ۱۳۳۴ کال د تلې مياشتې ۲۳ نيټه د دوشنبه ورځ په داسې حال کې چې د ملي شورى او اعيانو استازي د مجلسونو رئيسان محمد نوروز خان د شورى رئيس او فضل احمد خان مجددى د اعيانو رئيس حاضر وه د ملي شورى د دارالانشا د يوى شپې مخکې اعلاميې پر بنسټ د سلام خانې په مانۍ کې فوق العاده غونډه جوړه شوه.

تر غرمې مخکې پر يولسو بجو ښاغلي محمد داود صدراعظم د کابينې د پلاوي سره د مجلسونو په اجازه مجلس ته ننوتل د ملي شورى د ښاغلي رئيس په اجازه ئې د پښتونستان تاريخي قضيه د ټولو کړنو ، ديپلوماسي او د افغانستان د حکومت سياست چې په دې وروستيو کې د پښتونستان د خلکو د حقونو د تامين په لاره او د هغوى د ژوند ليک د ټاکلو د پاره چې خپله د پښتونستانيانو د عامه رايو پر بنسټ نيول شوى وه ، د پاکستان د حکومت د نا قانونه تيريو او کړنو په ځانګړې توګه هغه وروستنۍ ګامونه چې د پښتونستان خاوره ئې بيله ټول پوښتنې او د پښتونستان د خلکو د رضايت نه پرته د پاکستان په لويديځ يونټ پورى تړلې دى و مجلس ته په تفصيل سره وړاندې او د پښتونستان د مسئلې په هکله د مجلسونو نظر ئې د افغانستان د راتلونکي سياست د تعقيب او کړنلارې په اړه وغوښت.

د صدراعظم د راپور تر اوريدو وروسته مجلس د رايو په اتفاق سره داسې تصويب کړه:

د پښتونستان د مسئلې په اړه د ملي شورى او اعيانو د۱۳۳۴ کال د تلې د درويشتمې نيټې د ګډې جرګې پريکړه:

۱. د افغانستان حکومت کوم ګامونه چې تر نن پورى د پښتونستان په مسئله کې اخستي دي دهغه تصويب له مخې دي چې پخوا د ۱۳۲۸ کال د چنګاښ په لسمه نيټه د ملي شورى لخوا اعلان شوى وه او د ملت د هيلو او اميدونو سره بشپړ همږغي لرى.

۲. نن چې د پاکستان حکومت د بشري عدالت او د ملګرو ملتونو د منشور خلاف د پښتونستان د مليونونو خلکو پر روا حقونو باندې د تيرى لاس غزولى دى او بيله دې چې د خلکو ټول پوښتنې ته مراجعه وکړى د پښتونستان د خلکو ژوند ليک ئې په زور د پاکستان په لويديځ يونټ پورى تړى چې دا يو څرګنده تيرى دى، غندو ئې او يو ځل بيا اعلان کوو چې د افغانستان ملت به هيڅ ډول د پښتونستان خاوره د هغه ځاى د خلکو د ازادو رايو نه پرته د پاکستان د خاورى د

استازیتوب د افغانستان د صدراعظم ښاغلی محمد داود د حکومت سیاست د پښتونستان په هکله په کامل باور تایئد او د هرهغه ګام په هکله چي ودی ملی هدف ته درسیدو لپاره د حکومت له لوری پورته کیږی خپل ملاتړښکار کاوه.

## د هیواد د پنځه کلان پلان په برخه کی د ښاغلی صدراعظم وینا

بسم الله الرحمن الرحیم !

نحمده و نصلی علیه ، د خپل لوي مهربان خدای څخه مننه او د انتخاب شوی نبی محمد (ص) پاک روح ته د

ر ب العالمین د رحمت ډیر زیات درودونه ډالی کوم .

د ملت درنو استازو ستاسی د نن ورځی مهمه غونډه او اوسنی غونډه د هیواد د پارلمان په تاریخ کی یو ځانګړی ځای لری ، خپل ځان بختور بولم چي نن ورځ د افغانستان د پاک ملت د استازو په حضور او دهیواد په ژوند پوری د اړوندی موضوع پر شاوخوا ستاسی سره خبری کوم او ستاسو د پریکړو او عالمانه څرګندونو څخه ګټه اخلم .

د اوسنی جرګي اجندا اقتصادی پنځه کلن پلان جوړوی داسی یو پلان چي د لمړی ځل لپاره ستاسی د دقیق پام او ژوری مطالعی څخه تیریږی ، ښاغلی استازی خبر دی چي د نن ورځی د علم او تمدن په نړی کی د بشر د اړتیاو د پوره کولو او د خلکو د سوکالی او هوساینی دپاره ټولنی زیار باسی د د اسی یو عمل د شکل پیروی وکړی چي پر اقتصادی ټینګو ستنو او ټولینز عدالت باندی تکیه ولری ، او د خلکو د ژوند کچي او مدنی پوهه لوړه کړی ، د دی بهیر له مخی د نړی هر هیواد د خپل اقتصادی پرمختیا لپاره د خپلی ټولنیزی او تخنیکی وضعي په پام کی نیولو سره د بیلا بیلو سیستمونو څخه ګټه اخلی. هغه هیواد چي چاپیریال او ټولنیز شرایط ئی تقاضا کوی د پلانیزه سیستم څخه ئی کار اخستی دی ، دا سیستم ټول مالی او اقتصادی حرکتونه په یو څرګند چوکاټ کی د څرکند وخت په ټاکلو سره محدودوی او نه پریږدی چي د اقتصادی فعالیتونو د سرته رسولو په وخت کی بیل هدفونه مخته بوزی ، چي د کارو د پرمختګ د قدرت ، مالي توان او د چاپیریال دشرایطو وړنه وي او یا د هغه په وسیله ټولنیز عدالت تامین نشی له دی

لړوالى، د نقليه واسطو د منظمو ليکو نشتوالى او په دى ډول نور ، بايد د اقتصادى پرمختيا په لار کى اړين زيار ويستل شى. د دى لپاره چې دا ستونزى له منځه ولاړى شى او د طبيعى زيرمو څخه لاښه ګټه پورته شى او اقتصادى کارونه سره ونه پاشل شى د اوسنى زمانى د اساساتو او تخنيک د چاپريال د احوال او شرايطو سره سم کار واخستل شى ، هرو مرو به ټولى پروژى ، پروګرامونه او هلى ځلى ګټورى او اقتصادى وى تر کومه ځاى چې د هيواد پر توا نائى اود کار د قوى او د چاپيريال د ټولنيزى وضعې سره سم د هغوى اجراات امکان ولرى،په کړنلارى کى ګډ او د يو ټاکلى اقتصادى پلان په چوکاټ کى تثبيت شى ، او په دى توګه د دى اړتياو د له منځه وړلو په هيله ګټور بنستونه طرح شى چې د هغه پر بنسټ او شيننه دا موجودى اقتصادى ستونزى کمى شى او وړ اقتصادى کارونه په ټوليزه کچې او يو پوره همږغى سره پر مخ ولاړې شى او د بهرنيو اړينو پانګه اچوونو دپاره اړين شرايط برابر شى . ددى اړتيا پر بنسټ د ډيره وخته څخه په هيواد کى د اوسنى اقتصادى پلان د جوړيدو مفکوره موجوده وه او د هغه د پاره کوښښ کيدى خو برياليتوب په برخه نه شو تر څو حکومت خپله اقتصادى کړنلاره وټا کل او اعلان ئى کړه او هوډ ئى وکړ چې د هيواد اقتصادى پلان دى جوړشى ، د حکومت د دى عزم پر بنسټ د ماليى د وزير ښاغلى عبدالملک او د ملى اقتصاد د وزارت وکيل ته هدايت ورکړ تر څو په دى برخه کى دې د ملى اقتصاد وزارت ګټور ګام پورته کړى اوهمدارنګه د او کار د اجرا وړ تجربه لرونکو متخصصينو ته دنده ورکړه شوه تر څو په ډير جديت سره د يو پلان دجوړولولپاره لمړنى موادو او اړين ارقام اواحصائيې د راټولولو په هکله ګټور ګامونه پورته کړى.

لکه څنګه چې نوموړو کميسيونونو د ډيرودرنووزيرانواوارونډو وزارتونو په ګډه موږته د پلان لمړني مواد برابرکړل او په دى توګه د ۱۳۳۴ کال د لندي په مياشت کى د متخصصينو، پوهو او تجربه لرونکو کسانو په ګډون يو غښتلى پلاوي د پروژو د ځيرني او د اقتصادى پلان د تدوين په کار پيل وکړ. او د لوي خداى په مرسته د ۱۳۳۴ کال په پاى کى بشپړ شو.

د دى پلان موخه د يو روښانه اقتصادى سياست پيروى ، د طبيعى سرچينو څخه تر ممکنه حده ګټه اخستنه.او د انسانانو د کار د قوى د پانګى او اقتصادى هلو ځلو پکار اچول ، د فنى کسانو او کار کوونکو روزنه او د ټولنيزو خدمتونو ترسره کول د ټولنيز عدالت پوره کول ، د پرمختيائى کچې لوړتيا چې د اقتصادى بيلابيلو چارو په برخه کى ترسره کيږى په لنډ ډول توضيح کيږى .

مالیات ،ګمرکی مالیه ، صکوک ، مالیه ، د لوکسو مالونو استهلاک ، څارویو پر سر مالیه ، د بانکداری پیسی ، د اسعارو کنترول ، فینانسان د پلان ډیرول . د اقتصادی پلان لنډیز او پایلی ئی چې د پوره تطبیقاتو له وجه ئی وړاندوینه شویده.

د ملت درانه استازي ښه خبردی چې د اقتصادی پلان جوړونه او د هغه پلی کول د نړۍ په پر مختلونکو هیوادو کی چې د هر ډول تشکیلاتو ، تجهیزاتو ، دقیق شمیر او نورو عصري وسائلو درلودونکی دی اسانه کارنه دی .

د کار د پلی کیدو په بهیر کی هغه غلطی اصلاح کوي ، په دی ډول مونږ هم نشو کولای ووایوچې زمونږ اقتصادی پلان باوری احصایه او پاته په هغه پوری نور اړونده مسائل له نیمګړتیاوو څخه دي تش وی.

په دی باور یم چې د کره کتنی له کبله د ملت د استازو په مرسته به د هغه علمی پایلی په غور سره د هغه څارنی په نتیجه کی د ډاډ وړ وی.

که چیری د عمل په ډګر کی نیمګړتیا ولیدل شی باید سمه شی د قادر او توانا خدای په فضل اود ټولو مرستو ، دولتی دائرو ، خصوصي اوشخصي موسسو اود افغانستان د نجیب ملت دنورووګروپه ګډه مرسته به د پلان د پرمختګ خنډونه لری او مطلوبی پایلی به پلاس راشی.

( ومن الله توفیق)

( د شورى د نهمی دورې د دوهم کال د دوهمی ګنی د مجلی څخه نقل)

## د ۱۳۳۵ کال د بودجې د وړاندې کولو پر وخت د مالیې د وزیرښاغلی عبدالملک عبدالرحیم زی وینا

د خپل قادر ، پاک ، دقیق محاسب او عادل خدای شکر پرځای کوم او د شوری د بنسټ ایښودونکی سید لولاک روح ته ډیرډیر درود استوم.

درنو استازو !

د متعال خدا ی په فضل دا دی د دولت دړمه سیستماتیکه او قانونی بودجه د صدراعظم سردار محمد داود دحکومت په وخت کی د ملت د باخبرو استازو د تصویبونو سره سم وړاندی کوم ، د دولت د عوایدو او لګښتونو دقیق حساب ستاسو حضور ځخه تیروم.

ما د نظام او منظمی دستګاه د حساب د پیدا کونکی په مرسته د خپل توان په اندازه کوښښ کړیدی چي خپل حسابونه ترتیب او جوړ کړم ، پدی هکله ما د قدرت فطری درس چي د بشر پرمختیائی بهیر د هغه پر بنسټ دوام لری هیر کړی نه دی ، زما لارښود په دی هکله هغه څوک دی چي نړی ئی پیدا کړی او د هغی دوام او خط السیر د هغه پلاس دی.

د نړی د عمر څخه ملیونونه کلونه تیریږی ، فزیکی ، سیاسی ، ادبی ، کلتوری او تاریخی بیلا بیلی پیښی او بدلونونه یو په بل پسی منځ ته راغلی او تللی دی خو د دی دستګاه نظم او د کیفیت ډک حساب همدارنګه ثابت او پرځای دی تر څو چي تاکلی ورځ راورسیږی او د حساب او سنجش وروستی کال پیل شی.

مونږ باید د زمانی د مکمل دفتر څخه د عبرت سبق زده او د خپلو چارو د ښه والی لپاره ځان و نه سپموو څکه طبیعی زده کړه د انسان لپاره بیله کوښښه بل څه نه ده ، څښتن تعالی هغه پیرزوینه او مهربانی چي پخپل ذات کی ئی لری د ملت څخه نه سپموی څو چي هغه ملت خپل کړه وړه بدل نکړی. باید د لوی خدای (ج) د هغه تل پاتی نعمت چي زمونږ او زمونږ د هیواد په برخه کړیدی منندوی وو اوسو.

د نعمت شکر هغه وخت په ځاي کیدای شی چي د هغه قدرت مند لاس د قیمتی ورکړو، اوبو او خاورو د بنیګڼو څخه د وخت د غوښتنی او اړتیا له مخی ګټه واخلواو دخپل وخت بچیان واوسو.

پر مونږ ده چي خپل محیطی استعدادونه سم سنجش او په کار واچو ، صالح بنده ګان د دی طبیعی میراث څخه ښه ګټه اخلیي د کار میزان یعنی سنجش او حساب مونږ ته معرفی شویدی او پردی لاری باندی د

**د قدر وړ استازو !**

د والاحضرت سردار محمد داود ویښ او فعاله حکومت د عدالت خوښونکی ، ملت غوښتونکی د مدبرانه لارښونو او لوړوارشاداتو په بنسټ د غیرتی ملت په همږغی د قانون په پلی کیدو او ټولینز عدالت په مراعتولو سره الحمد الله په چابکی او میړاني سره چي دملی نهضتنو د پرمختګ په لوری روان دی او ستاسی پخوانی هیلی د نیکه مرغه سرته رسیږی او یو روښانه بیلګه ئی همدا د دولت د بودجې ترتیب او تنظیم او عملی شاهد دی. دری کلنی بودجې ته په لنډي کتني سره څرګندیږی چي د مالیي وزارت و هیواد ته د خدمت د سابقی او مسوولیت پر بنسټ بیله دی چي ددولت د محصولاتو او مالیاتو د تعرفی نرخ لوړ بوځی او یا کومه نوې مالیه وضع کړی د عوایدو د زیاتولو لپاره لازم زیار ایستلی او د وارداتو د لاس ته راوړلو په اړه د تحقیق د طرحي او عملیاتو د تنظیم لا لاري ئی د دولت عواید ډیر کړیدی او د دی لاری ئی په ډیره لویه پیمانه د ټولنیزو ټولګټو خدمتونو دپاره وړه موقع برابره کړیده . په ۱۳۳۴ کال کی هغه خنډونه چي د هیواد د اقتصاد د پرمختیا په لاره کی راغلل اساساً د انګیرني وړ وه ، څکه په دی کال کی د پاکستان د اقتصادی محاصرې سره مخامخ وو او دا حالت هغه وخت پیښ شو چي د یوی خوا د وارداتو د عمده توکو لکه پر عایداتواو ځمکی باندی مالیات ، اوداسي نورو عایداتود تحصیل موقع وه او د ګمرک محصول چي د دولت د وارداتو تل پاتی ډیره برخه جوړوله په یو وار په شدید ډول تر اغیزه لاندی راغلی د بلی خوا د میوو د صادرولو وخت د دی محاصری سره سر وخوړ او په دی توګه د دولت د مالی بحران امکانات او د میوی د صادراتو بندیدل او د هیواد د سوداګریو د دریدو لامل شو. د دی محاصری ډیری بدی اغیزی د لاندی بیلګو څخه په ښه توګه څرګندیداي شی.

د مالیي وزیر د بودجې د کمښت د علمی مالیوي نظریو په برخه کی وویل:

په ۱۳۳۵ کال د بودجې په برخه کی څنګه چي د یوي خوا اقتصادی پلان طرح او تدوین شو د حکومت تر پریکړی وروسته د ملی شوری محترم ریاست ته لیږل شویدی، د بله اړخه اقتصادی پلان تر اوسه پوری خپل تقنینی پړاوونه په اعیانو او ملی شوری کی نه دی بشپړ کړی ، څکه د مالیي وزارت ناچاره وه چي ۱۳۳۵ کال بودجه داسی ترتیب او تدوین کړی چي د پرمختیائی پلان عادی بودجه د تنازل حالت درلودونکی وی.

یعنی معموله بودجه د هغه زیاتوالی سره چي د دولت د ۱۳۳۵ کال په وارداتو او لګښتونو کی د مالی پلان پر بنسټ ترسره کړی په یا دول وشی ، د دی اساس له مخې د ۱۳۳۵ کال بودجه ترتیب شویده

هیله لرم چې ددولت د ارګانو د کار او فعالیت او دملت په دوام داره زیار او ملتیا زمونږ طبیعي سرچینې او ملي عواید داسې په کار ولویږي چې هیواد د هغه د ګټو څخه برخمن او دولت د خپلو پرمختیا ئي پلانونو په سرته رسولو کې بریالي اوسي.

انشاالله

(و من الله التوفیق)

## د ۱۳۳۴ کال څخه تر ۱۳۳٦ کال پوری د نهمی دورې پریکړې

د اداری هیئت تر ټاکلو ، د انجمنونو تر جوړولو او دملی شوری د داخلی چاروترتنظیم وروسته د ۱۳۳٦کال د لړم څخه د ۱۳۴۰ کال د چنګاښ تر اتمی نیټی پوری :

۱. د افغانستان او سوئډ تر منځ د سرپل د پطرولو د برمه کاری تړون.

۲. د افغانستان او یوګوسلاویا د دوستی تړون.

۳. د محصولاتو د اخستنی د اصولنامې پروژه، چې په بهر کی د افغانی قونسلګریو لخوا اخستل کیږی.

۴. د جرم د ممانعت او سزا په نړیوال کنوانسیون( جینو سایټ) پوری د افغانستان تړل.

۵. د غلي د تهیه کولو د موسسی اساسنامه او د افغانستان او اندونیزیا تر منځ د دوستی تړون.

٦. د کلیوالی صنایعو او کرهنیز بانک اساسنامه ، د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ د ترانزیت تړون.

۷. د برق اصولنامه او دافغانستان او موریسن کمپنی ترمنځ د عمرانی دستګاه تړون.

۸. د پښتونستان د مسئلي په هکله د حکومت د دریځ نه د ملی شوری ملاتړ.

۹. د مالی مسئلو ، د ملکیت تصفیه ، د کجکی او ارغنداب تر بند لاندی د ځمکی د اوبو د قیمت د پروژی اصولنامه.

۱۰. د افغانستان او شوروی تر منځ د دوه اړخیزه بي پلوي او نه تیری د تړونونو د پرتوکول دوام او د اعتبار موده ئی .

۱۱. د افغانستان ، استریا او ترکیی ترمنځ د هوائی سرویس هوکړه .

۱۲. په افغانستان کی د بهرنی خصوصی پانګی اچونی د قانون پروژه.

۱۳. د افغانستان او فرانسی ترمنځ د اقتصادی او تخنیکی مرستو هوکړه.

۱۴. د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ د سل میلیونو امریکائی ډالرو د پور د اخستلو هوکړه .

۱۵. د ۱۳۳۵کال د زمری ۳۱ ،د دولت د پنځه کلن اقتصادی پلان تصویب.

۱٦. د افغانستان او پولنډ ترمنځ پر تادیاتي مالونو د راکړی ورکړی سوداګریزه هوکړه .

۱۷. د ولایتونو د مشورتي مجلسونو اصولنامه ، د افغانستان او لایبریا تر منځ تړون ، او د عدلي

۲۰. د تارياكو د كښت د منع كولو پروژه ، د سړك او ترانسپورت په نړيوال كنوانسيون پورى د افغانستان تړل ، او د افغانستان د ملكى ويش اصولنامه.

نوت: پر پورته موضوعاتو سربيره د ملي شورى،د لارى د دولت دري كلني بودجې كتنه او مطالعه او ددى پروژې پريكړه.

## په ۱۳۳٦ كال كي د ملي شورى د عمومى غونډى پريكړى

د اووګونو كميسيونونو د شمير د ټاكنو پريكړه ، د هغوى د رئيسانو او غړو ټاكل ، د كميسيونو او عمومي غونډى د كار د ورځى ټاكل.

د ښاروالى د اصولنامې د پروژې په هكله د لنډ مهاله كميسيون د غړو د ټاكلو پريكړه .

د مامورينو د رخصتى او د حاضرى د اصولنامې د ۱۳ نمبر د دوو ضميمو د اصل بدلون ، د مامورينو د كار ساعتونه په ځانګړى توګه د روژې د مياشتي په هكله د كال په هر موسم كى د سهار د ۸ بجو څخه پيل او بى له خنډه پنځه نيم ساعته كار تر غرمى وروسته په يوه نيمه بجه پاى ته رسيږى.

د افغانستان او برما د جمهورى اتحاد ترمنځ د لنډ مهاله تړون پريكړه.

د افغانستان او ايران د دولتونو تر منځ د سرحدى كميساريو د تړون پريكړه، په عادى سرحدى پيښو كى د كميسارانو د دندى په هكله د دواړو هيوادو د خاورو د پنځه څلويشت كليومترى حدود په دننه كى .

د ولايتونو ، لويو او اعلى حكومتونو د سلاكار مجلس د اصولنامې د پروژې د اتلسو موادو پريكړه .

د افغانستان د شاهى حكومت او د پاكستان د جمهورى حكومت تر منځ د هوائى خدماتو د هو كړى پريكړه.

په افغانستان كى د ملكى هوائى چلند د اسانتياو د اصولنامې د پروژې پريكړه .

د غيرمكتبى پوليسو ، ژاندارم او عسكرى كسانو په معاشونو كى زياتوالى او د خدماتى پرسونل په تنخوا كى په سلوكي د پنځلس دزياتوالى پريكړه.

د پلان وزارت د تشكيل دګراف او د دندو په لايحه كى د بدلونونو پريكړه.

د غالى پلورونكو ، درمل پلورونكو ، مغازه لرونكو پر ګټو د مالياتو او د ټولو هغو ټولګيو چې په پنځه كلن

د وارداتو د بودجې د وړاندوینې اود لګښتونو د بودجې ، د ۱۳۳٦ کال د شپږو میاشتو دعمومي انډول ، د قانون د دولسو موادو پریکړه .
د لمړنې دعوو د میعاد د ټاکلو د اصولنامې د د ولسمی مادی د بدلون پریکړه .
د عمومي محاسبو او د هغوی د سابقو د بهیر د اصولنامې د پروژی پریکړه.
د افغانستان او چین حکومتونو ترمنځ د تادیو او مالونو د راکړی ورکړی د هوکړی پریکړه.
د ملکی هوائی چلند د اصولنامې د لسو مادو د بدلون پریکړه.
د سلاکاره مجلس د اصولو د اتلسمی مادی د تبصری پریکړه .
د ښاروالی د اصولنامې د پروژی پریکړه .
د دعوو د اوریدلو د میعاد د اصولو د یوي ضمیمې پریکړه .
د هیواد د ۱۳۳٦ مالی کال څخه د ۱۳۳۷ کال د وړی تر پایه د عادی او پرمختیائی بودجې د عمومي انډول د قانون د یولسو مادو د محتوا پریکړه.
د ملکی ویش د اصولو پریکړه.
د جوړ شوی ګراف سره سم د مالیي وزارت د نوي بودجي پریکړه.
د موټری ترانسپورت او سړک د یو نړیوال کنوانسیون پریکړه .
په افغانستان کی د تریاکو دکښت د بندولو، په کاروړلو، واردولو ، صادرولو ، پلورلو ، پیرودلو ، سوداګرې د اصولنامې پریکړه ، چي په ترڅ کی ئی د افغانستان د ۱۳۳۵ کال د زمری د نهمی نیټی د تریاکو اصولنامه لغو شوه، پردي سربیره د هغې هو کړی اصول چي پخوا د دولت د نړیوال کنوانسیون څخه د تریاکو د کښت د اجازی د اخستلو لپاره کړی وه د تریاکو د کښت بندولو د قانون په لیکه کی د هغی لغو تصویب او تائید شوه.

( د ۱۳۳۹ کال د کلنی څخه)

## د اجرا وړ اصولنامو لړلیک د هغوی د یوازنیومادو اوضمیمو سره

۱. د هیواد بنسټیزه اصولنامه د دریګونو ضمیمو سره.
۲. د مامورینو د حاضری او رخصتی اصولنامه د دیارلس ډوله ضمیمو سره .

۸. د سوداګرى د دفترونو اصولنامه د دوه ډوله ضميمو سره.

۹. پر ګټو باندى د ماليو اصولنامه د درى ډولو ضميمو سره.

۱۰. د ملکى مامورينو او متقاعدينو اصولنامه ، د دوه ډوله ضميمو سره.

۱۱. د ملکى مامورينو د محاکمى اصول او محاکمو اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۱۲. د بهرنيو اتباعو د ګمارنې اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۱۳. د ګمرکونو د تعرفى اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۱۴. د پست اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۱۵. د تابيعت د تذکرى اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۱٦. د تلګراف اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۱۷. د سوداګرى د اتاقونو اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۱۸. د دلالى اصولنامې د يو ډول ضميمې سره.

۱۹. د تميز او مرافعى د اوريدلو ميعاد د يو ډول ضميمې سره.

۲۰. د شورى د استازو د ټاکلو اصولنامه .

۲۱. د ملى شورى د داخلى دندو اصولنامه.

۲۲. د مامورينو د مديريتونو اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۲۳. د تحريراتو د دائرو اصولنامه.

۲۴. دپاڅو د مديريتونو اصولنامه.

۲۵. د واده او نکاح د دود اصولنامه.

۲٦. د تعزيه دارى اصولنامه .

۲۷. د ښارويو پر سر د محصول اصولنامه.

۲۸. د دولتى تحويلخانو د مالونو د پلورلو اصولنامه.

۲۹. د ښاروالى اصونامه د يو ډول ضميمې سره.

۳۰. د توقيف ځايونو اصولنامه د يو ډول ضميمې سره.

۳۱. د بزغليو اصولنامه .

۳۷. د درملتونونو اصولنامه .
۳۸. د دولت د خزانو اصولنامه.
۳۹. د تابعيت اصولنامه.
۴۰. د ګمرکونو اصولنامه.
۴۱. د بندونو او ويالو لاندى ځمکو د پلورلو اصولنامه.
۴۲. د راډيو اصولنامه.
۴۳. د افغانستان بانک اساسنامه.
۴۴. د صنايعو د هڅونى اصولنامه.
۴۵. د سوداګرى اصولنامه.
۴۶. د سوداګرى د ثبت اصولنامه.
۴۷. د مفلسى (بيخرڅى) او ماتى خوړلو اصولنامه.
۴۸. د کار او کارګرانو اصولنامه.
۴۹. د پلټنى د لوي رياست اصولنامه.
۵۰. د ترافيکو اصولنامه.
۵۱. د عسکرى جزا اصولنامه.
۵۲. د عسکرى محاکمو اصولنامه.
۵۳. د رسنيو اصولنامه.
۵۴. د مامورينو او مستخدمينو په هکله يوه ماده.
۵۵. د بنديانو د تيښتى په هکله يوه ماده.
۵۶. د جنين د قصدي سقط په اړه يوه ماده.
۵۷. د موټر په هکله يوه ماده .
۵۸. د پيرودلو اصولنامه.
۵۹. د استوګنى د ويزى اصولنامه.
۶۰. د جنډى (بيرغ) اصولنامه.

**هغه اصولنامې چې په دې وروستيو کې چاپ او د ګټې اخستنې لپاره ايښوول شويدي**

دا دې په تيرشوي ډول سره يو شمير اصولنامې په دې وروستيو کې د ملي شورى د دارالانشا دخپرونو د مديريت د چارو لخوا په پښتو او فارسي ژبو چاپ او د ګټې اخستنې وړ ګرځيدلي دي د درنو مينه والو د خبرتيا د پاره ئې د لاندې ډول فهرست کوو.

( که چيرې دائرې او مينه وال د دې اصولناموڅخه کومې يوې ته اړتيا ولرې د ملي شورى د محاسبې او لوازمو مديريت چمتو دې په ډير درنښت سره د هغوى سپارښتنې اجرا کړي ) .

١. په څوارلس څپرکو او پنځوسو مادو کې د ملکي ويش اصولنامه د اړونده ګراف سره .
٢. د ښاروالي نوي اصولنامه.
٣. په ولس مادو کې د ولايتونو ، لوي او اعلى حکومتونو د سلا کارو غونډو اصولنامه.
٤. په يولسو څپرکو او اويا مادو کې د اړونده جدولونو سره د ملکي هوائي چلند د اسانتياوو اصولنامه.
٥. په ٢٧٩ مادو کې د عدليه محاکمو ادارى اصولنامه.
٦. په ١٢٧ مادو کې د عسکرى تقاعد او ترفيع اصولنامه.
٧. په ٢٣ مادو کې د افغانستان د شاهي اردو دهوائي قواو د ښوونځي د وړو ضابطانو اصولنامه.
٨. په ٩٤٥ مادو کې د افغانستان د سوداګرى اصولنامه.
٩. په پنځو مادو کې په افغانستان کې د ترياکو د کاراخستنې ، صادريدو ، واردېدو او د کرهنې د بندولو اصولنامه.
١٠. په ١٩ مادو کې د افغانستان د شاهي دولت د ملکي هوائي چلند اصولنامه.
١١. په ٣٠ مادو کې د نوى تذکرى اصولنامه.
١٢. په ٢٦مادو کې د ملکيت د تصفيې او مالي مسئلو اصولنامه.
١٣. په ٣۴ مادو کې د نفوسو د سجل د ثبت اصولنامه.
١۴. په ۴٣ مادو کې د افغانستان د جنډې ( بيرغ ) اصولنامه.
١٥. په ۴٢ مادو کې د کرهنې د بانک اساسنامه.
١٦. په ٣٦ مادو کې د غنمو د برابرولو اساسنامه.

۲۰. په جزائى او حقونهى دعوو كى د تميز او مرافعى د اوريدو او د لمړنيو دعوو د ميعاد د ټاكنى د اصولنامې د ۱۷ مادى تعديل .
۲۱. د عسكرى تقاعد او ترفيع د اصولنامي د ۱۰۹ مادى بدلون.
۲۲. د مامورينو د حاضرى او رخصتى د اصولنامي د دوهم اصل بدلون.
۲۳. د ملكى مامورينو د ترفيع ، تقاعد اوګمارني داصولنامې ضميمه او د موجوده رتبى او يوى لوړى رتبى تر منځ د معاش د څلورمى د تفاوت په هكله.
۲۴. د ګمرک د تعرفى د اصولنامې د دوهمى مادى بدلون.
۲۵. د لمړنيو دعوو او د تميز او مرافعى د اوريدلو د ميعاد ټاكنه، د هغو حقونو او جزائى دعوو په هكله چي د هغوى فيصلى د تميز د عالى رياست څخه تيريږى.
۲۶. د ملكى مامورينو د ترفيع او تقاعد د ۱۳۳۴ كال د زمرى د ۳۰ نيتى داصولنامې د ضميمې د لمړى مادى تعديل .
۲۷. د ملكى مامورينو تقاعد ، ترفيع او د ټاكنى د اصولنامې د ۵۴ مادى بدلون.
۲۸. د جيلونو او توقيف خايونو ضميمه په دى هكله چي د حكومت د جريمى د پيسو بخښنه چي د هغوى د تر لاسه كولو څخه مخكى مړ شى.
۲۹. د عسكرى اصولنامې دريم نمبر ضميمه.
۳۰. د ملكى مامورينو دمحاكمو د اصولنامې د ۱۱ مادى بدلون.
۳۱. د تميز او مرافعى لخوا د لمړني ، جزائى او حقونهى دعوو د اوريدلود ميعاد ټاكلود اصولو ضميمه
۳۲. د احتياط د ظابطانو د غيرحاضرۍ د فقرو په هكله د احتياط د ظابطانو د اصولنامي دوهم نمبر ضميمه.
۳۳. د افغانستان بانک د اساسنامى د ٦۲ مادى بدلون.
۳۴. د عسكرى مكلفيت د اصولنامې د دوهم نمبر ضميمې د ۲۳ مادى بدلون.
۳۵. د عسكرى مكلفيت د اصولنامې لمړى نمبر ضميمه.
۳٦. د مرافعى او تميز لخوا د لمړنيو ، حقونهى او جزائى دعوو داوريدلو د ميعاد د ټاكني د اصولو د دريمى مادى تبصره

۴۱. د افغانستان د مروجه نوټونه د اصولنامې څلورم نمبر ضميمه.

۴۲. د ملكى مامورينو ترفيع ، تقاعد او ګمارني د اصولنامې د نهمى مادى لنډه مهاله تبصره .

۴۳. د ملكى مامورينو ترفيع ، تقاعد او ګمارني د اصولنامې د ۱۸ مادى تبصره.

( د ۱۳۳۷ كال د شورى د مجلى د دوهمى ګڼى څخه نقل)

